پته بادغیس ولایت بالامرغاب ولسوالی
اشرف العطایا
شرح
ایسا غوجي
مؤلف:
مفتي عطامحمد دیوبندي
0703024704
نشر کونکې اداره
عبدالستار میموریل
ویلفیر ایسوسي ایشن (رجسترډ)
خبیب کتابتون

د کتاب نوم: اشرف العطايا شرح ايساغوجي

مؤلف: مفتي عطا محمد ديوبندي

سن اشاعت: 2016

شمېر: ۱۱۰۰

کمپوزر: مفتي عطا محمد

نشر کونکې اداره: عبدالستار ميموريل ويلفير ايسو سي ايشن

استاک مکتبه سلطانيه کوټه

شمېره نمبر: 03233813889

"Compressed with PDF Compressor by DLM Infosoft" appears as a watermark; tagged below.





تاریخ ۲ جمادی الاولی ۱۴۳۷، ۱۴ فروری ۲۰۱۶ ، بروز اتوار وقت الصباح

نحمدک یا من جعل المنطق میزانا لطریق التفهیم و التحقیق، یا من زین الاذهان باکتساب التصور و التصدیق ، و نصلی علی نبیک الهادی الی سواء الطریق و سید السادات ، سیدنا محمد و علی صحبه و آل بیته احمعین؛ و من تبعهم باحسان الی یوم الدین خصوصا الامام الاعظم ابی حنیفة رحمه الله فقیه الامة و فقهاء الامة و ائمة الدین، تظهر لک اهمیة هذا العلم علم المطق عند ما تری مدی ارتباطه بالعدید من العلوم الاساسیة عدنا نحن المسلمین، و من هم اهم هذه العلوم التی یرتبط بها علم المنطق : علم التوحید و علم اصول الفقه . و لذالک وصفه الامام الغزالي بانه : معیار العلوم ، بل قال " من لامعرفة له بالمنطق لاثقة بعلمه ". و علی الرغم من ذالک . فان لعلم المنطق اهمیة عظمیة، و لذا وجهتُ الی شرح الکتاب المسمی بایساغوجی الذی لاشرح له في اللغة البشتو مشتملاً علی حل العبارة و الحواشي. متي طُلبتُ ان اشرح له شرحا جامعاً لهذه الصفات، فاتیتُ بفضل الله الکریم فالان هذا لدیک.

قَالَ الشَّيْخُ الْإِمَامُ أَفْضَلُ الْمُتَأَخِّرِينَ، قُدْوَةُ الحُكَمَاءِ الرَّاسِخِينَ.

## ترجمه

شیخ ویلي دي کوم چي پېشوا، د علماؤ دي، او غوره د متأخرینو څخه دي. او پېشوا د هغه حکماؤ دي کوم چي ټینګ دي په اعتبار د علم.

## تشريح

**الشيخ:** هغه کس چي د هغه عمر تر پنځوس کاله لوړ وی. بیا تر آتیا کاله یا تر مرګ پوري" بناء په اختلاف باندي "دی شیخ وی.

شَيْخ: ( اسم ) فاعل من شاخَ ، و جمعه : شُيُوخٌ ، أَشْيَاخٌ ، مَشْيَخَةٌ و مَشَايِخُ ، هو من أدرك الشيخوخةَ ، وهي غالبا عند الخمسين ، وهو فوق الكهل ودون الهرم. (المعجم الوسيط)

**الامام:** هغه کس چي دی د خلکو پیشوا وي. او خلک په ده پسي په کاروبار یا په احوالو کي اقتداء کوي.

الإمامُ : مَن يأْتَمُّ به الناسُ من رئيس أو غيره ، ومنه إمام الصلاة . الإمامُ : الخليفة . الإمامُ : قائد الجُند .

**العلامة:** هغه کس چي ډېر زیرک او هوښیار وي. ستر عالم.

عَلاَّمة: ( اسم ) صيغة مبالغة من علِمَ / علِمَ بـ : علاَّم ، كثير العلم ، عالِمٌ كبير واسع العلم والمعرفة موسوعيٌّ علاّمةٌ

**افضل:** غوره، په ښه طریقه سره یو موضوع وړاندی کونکي کس.

أفضلَ على / أفضلَ من يُفضل ، إفضالاً ، فهو مُفضِل ، والمفعول مُفضَل عليه . أَفْضَلَ عليه : أَحْسَنَ إليه.

**العلماء:** علم، او معرفت لرونکي کس، د دین په کارونو سره خبر کس.

عالِم: ( اسم ) الجمع : عالِمون و عُلَماءُ ، اسم فاعل من علَمَ وعلِمَ / علِمَ بـ : هو مُتَصِفٌ بالعِلْم والمعرفة ، مُتخصِّصٌ في عِلْمٍ معيَّن عالِمٌ بأُمورِ الدِّينِ وَالْعِلْم : عَارِفٌ بِهِما.

**المتأخرین:** په لغت کي ورستني ته ویل کیږی. او په اصطلاح کي حد ی فاصل د متقدمین او متأخرین تر مینځ ۳۰۰ هـ ده. تر ۳ سوه پوری متقدمین ورسته بیا متأخرین شروع سوه.

ان عصر السلف الصالح ينتهي بحدود عام 300هـ. فيكون النسائي (وهو آخر الأئمة الستة أصحاب الكتب المشهورة في السنة) هو خاتمة السلف حيث توفي سنة 303هـ وكل من توفي بعد ذلك لا يعتبر من السلف. هذا نهاية عهد السلف وليس السلفيين. فلا

تنافي بين بقاء طائفة على منهج السلف، وبين انقضاء عهد السلف أنفسهم. وقد ذكر الذهبي في مقدمة الميزان أن نهاية زمن المتقدمين هو رأس الثلاثمئة.

## خلاصه د اولي حاشي:

خُطبه دوه قسمه لري. ۱: ابتدائيه: اول ځلي خطبه وليکل سي، بيا پاته کتاب نويشته سي.
۲: الحاقيه: اول تصنيف تر سره سي بيا خطبه وليکل سي او د کتاب د شروع سره يو ځای سي. دلته د ايساغوجي خطبه الحاقيه ده، د مصنف رحمه الله يو شاګرد د کتاب سره يو ځای کړېده. او پر دې دليل دادی چي دلته صيغه د غائب "قال" راوړل سوېده که چيری دغه د مصنف خپل کلام وای نو بيا به ده داسي "اقول" ويلي وای.

خطبه ابتدائيه. [خ ُب َ/ ب ِ ي ِ اِ ت ِ ئی ی َ/ ی ِ] (ترکيب وصفی، اِمرکب) خطبه ای که در آغاز تاليف آورند. (از کشاف اصطلاحات الفنون).
خطبه الحاقيه. [خ ُب َ/ ب ِ ي ِ اقی ی َ/ ی ِ] (ترکيب وصفی، امرکب) خطبه ای که پس از نگاشتن تاليف به آخر آن آورند بنام خطبهٔ الحاقيه است. (از کشاف اصطلاحات الفنون).

## خلاصه د حاشيه نمبر ۲:

**د شيخ مصداق:** په علم المنطق کي د شيخ مصداق ابو علي ابن سينا دي، البته که چيری هلته کومه داسي قرينه وجود و لري چي د شيخ ابو علي څخه سيوا بل څوک مراد وی نو بيا هلته هم هغه کس مراد دی نه ابو علي.
او په فقه او اصول الفقه کي امام اعظم ابو حنيفه رحمه الله دي، په علم النحو کي عبد القاهر جرجاني، او په علم العقائد و الاخلاق کي بيا علامه ابو منصور ماتريدی دي. او دغه ډول دغه خبره ذکر سوېده:
**زه وايم:** د شيخ اطلاق که څه هم پر امام ابو حنيفه رحمه الله باندی صحی دي مګر په فقه او اصول الفقه کي چيری هم پر ده باندی دغه اطلاق تر سره سوی نه دی.
شيخ په لغت کي سپين ږیری ته ويل کيږی، او په اصطلاح کي هغه کس ته ويل کيږی کوم چي په يو علم کي د علومو پنځه تصانيف ترسره کړي وي. او د اهل السنة و الجماعت په وړاندی هغه کس ته ويل کيږی کوم چي سنتونه په خپل عمل او ژبه سره ژوندی کوي او بدعات

پوره پېږدي. او د هغو تردید کوي. او په تصوف کي هغه کس ته ویل کیږی کوم چي خپلي یا د مرید پنځه لطائفي په ذکر سره د الله جل جلاله ژوندي کوي.

لطائفي خمسه دغه د زړه او یا د نفس ناطقه پنځه احواله دي. او دغه اهل تصوف په دې پنځو نومونو سره نوموي.۱: قلب.۲: روح.۳: سر.۴: خفي.۵: اخفي.

من الذكر يحدث تدرج في النفس البشرية للارتقاء مع الله، ومن الذكر تتحرك اللطائف الخمس، واللطائف الخمس هذه أحوالٌ للروح أو للنفس الناطقة، يسميها أهل الله: ( القلب، والروح، والسر، والخفي، والأخفى )، وهي مراتب لا يدخل الإنسان في واحدة منها إلا إذا فصَّل ما قبلها؛ فهناك مرحلة تسمى بمرحلة القلب، ثم أعلى منها الروح، ثم أعلى منها السر– حتى العوام يقولون خرج السر الإلهي – ثم أعلى منها الخفي، ثم أعلى منها الأخفى، وهذه كلها إنما في عالم الملك، ومثلها ينعكس في عالم الملكوت، فالمراتب تصير عشرا، ومنها بعد ذلك درجات إلى أن ننتقل إلى عرش الرحمن، وهناك ما هو فوق عرش الرحمٰن بما يسمى عوالم، فكل هذا الملك والملكوت يسمى عالم الناسوت، والكون ما سوى الله رب العالمين، وهناك عالم هو عالم الرحموت، وعالم اللاهوت، وعالم الجبروت، وعالم العظموت، وهذه تجليات لله – سبحانه وتعالى – . وهذا غاية ما اطلع عليه البشر؛ والله لا نهاية له، ولا محيط به، لا من الملائكة المقربين، ولا من الأنبياء المرسلين، فهو – سبحانه وتعالى – القاهر فوق عباده وهو حكيم خبير، – سبحانه وتعالى – لا يحيط به عرش، ولا يصل إلَيه في كنهه بشر، لا سيدنا محمد ولا من هو دون ذلك، فالرب رب، والعبد عبد، وهناك فارق، بين المخلوق والخالق.

ولا يزال المختلي في خلوته يذكر الله إلى أن يفتح الله عليه، وكان من المعتاد أن يُفتح في اليوم العشرين، في اليوم الواحد والعشرين، في الثالث والعشرين فيتم العدة تبركاً وحمداً لله تعالى أن فتح عليه.

والفتح يجعل الإنسان على يقين لا يتردد أبداً؛ لا في عبادته، ولا في حقيقة النبي ﷺ – ولا نورانيته، ولا في الطريق الذي يسلك، ولا في الأدب الذي يتبع؛ وتتحول المسائل إلى مشاهدات أكثر منها معلومات، تتحول المسائل إلى رضا، واستقرار، وتسليم لا ينازع الإنسان نفسه ولا يطالِب.

(يتبع)

## خلاصه د دریمي حاشیه:

په دې خبره سره پوه سه چي په علم المنطق کي چي څه وخت د امام اطلاق وسي نو د هغه څخه مراد فخر الدین رازی رحمه الله وي. او په علم الکلام کي ابو منصور ماتریدی رحمه الله او په علم النحو و البلاغة کي عبدالقاهر جرجاني او په علم الحکمة کي هم امام رازی رحمه الله او په فقه کي امام ابو حنیفه رحمه الله مراد وي.

امام په لغت کي لاربنود ته ویل کیږی. او په اصطلاح کي هغه کس ته ویل کیږی کوم چي قوم دی په دیني او دنیوي کارونو کي مخکي کړي. شهرت ته رسېدلې خبره داده چي امام مفرد او جمعه دواړه په یوه لفظ سره راځي محض فرق یې په موصوف سره وي، که چیری موصوف جمعه وی نو دی بیا جمعه دی، په دې صورت کي همزه د امام داسي ده لکه همزه د رِجال، او که موصوف مفرد وو نو دی بیا مفرد دی او دغه کسره د همزې یې داسي ده لکه همزه د کِتاب.

لهذا د مفرد او د جمعي تر مينځ فرق اعتباري وجود لري دا داسي دی لکه فُلک ضمه يې لکه اُسد سي نو جمعه او لکه ضمه د قُفل سي نو بيا مفرد دی.او دا هم ويل سوی دی چي امام مفرد او جمعه يې آئمة راځي، او امام ډېر زيات استعماليږی.

## خلاصه د څلورمي حاشي :

علامه په لغت کي ډېر هوښيار ته ويل کيږی، او ددې څو اصطلاحي معناګاني بيان سوي دی.

۱: د څوعلومو علم لرونکي کس ته ويل کيږی.

**سوال:** علامه صفت او امام موصوف دی، موصوف او صفت تر مينځ په تذکير او تأنيث کي موافقت شرط دی او دلته دغه موافقت نسته، ځکه علامه د تاء په وجه مؤنث دی او امام مذکر دی؟

**جواب:** تاء د علامه په اصل کي د تأنيث لپاره وه ، مګر ورسته بيا د مطلقي مبالغه لپاره وګرز بدل، لهذا في الحال تاء لپاره د مبالغه ده نه د تأنيث چي بيا اعتراض وارد سي.

۲: هغه چا ته ويل کيږی چي په يو علم کي د علومو پنځه تصنيف لري.

۳: د علومو څخه په هر علم کي يو تصنيف لرونکي کس ته ويل کيږی.

۴: هغه څوک چي په هر علم کي دخل او د هغه په هکله معلومات لري.

۵: د معقولاتو او منقولاتو علم لرونکي کس يعني په عقلي علومو سره هم خبر او په قرآن او حديث سره هم خبر وی.

۶: هغه څوک چي پر هغه يو علم د علومو پوشيده او پټ نه وی.

**زه وايم:** په شپږمه معني سره علامه پر هيچا نه صادقيږی، ځکه په دنيا کوم داسي څوک نسته چي هغه د هر علم د مسئله په هکله خبر وی.

۷: هغه عالم چي په علم کي د خپل ځان څخه خبری اچونکي نه وی، بلکه دده علم د قوانينو د هغه فن موافق وي.

## خلاصه د پنځمي حاشيه :

حکماء د حکيم جمعه ده ، په لغت کي و پوه کس ته ويل کيږی.

**سوال:** پر انسان د حکیم اطلاق صحت نه لري، ځکه حکیم هغه چا ته ویل کیږي کوم چي پر ټولو احوالو د موجوداتو خارجیو علم لري، او پر ټولو موجوداتو باندي علم لرونکي محض الله جل جلاله دي نه بل څوک؟

**جواب:** د حکیم په تعریف کي قید "بحسب طاقة البشرية" مراد دی نو معني دا جوړیږي: د بشري طاقت موافق په احوالو سره د خارجي موجوداتو علم لرونکي کس ته ویل کیږي.

**سوال:** د حکمت په تعریف کي (کوم چي د تعریف څخه د حکیم معلومیږي) د "الموجودات الخارجية" قید راوړل صحت نه لري، ځکه دغه تعریف جامع خپلو افرادو ته نه دی داځکه چي هندسه او حساب په حکمت کي داخل دي، مګر تعریف ورته شامله نه دي، ځکه په تعریف کي "موجودات خارجيه" راغلي دی. او دوی دواړه د خارجي موجوداتو څخه نه دي؟

**جواب:** موجودات خارجیه عام دي، عام تردي په خپله په خارج کي موجود وی او یا په اعتبار د منشأ موجود وي. او دغه ذکر سوی اقسام که څه هم پخپله موجود نه دي مګر په اعتبار سره د منشأ موجود دي.

## خلاصه د حاشیه (بر متأخرین)

متقدم مقابل د متأخر دی. او تقدم پنځه قسمونه لري.

۱: **تقدم زماني**: یو ځای والي د ورستني شي د مخکني شي سره په یو زمانه کي په اعتبار د حدوث او پیدا کېدو ممکن نه وی، که څه هم دا کېدای سي چي مخکني شي د ورستني شي سره په اعتبار د بقاء او باقي والي جمعه سي، لکه مخکي والي د پلار پر زوی باندی. او س دا هیڅ کله کېدای نسي چي پلار او زوی دي په یوه زمانه کي وزېږي. البته ورسته بیا دواړه سره یو ځای کېدای سي چي دواړه ژوندي وي.

۲: **تقدم مکاني**: یو ځای مقرر سي، و هغه ځای ته ژندی تر بل متقدم او لری والا شي متاخر دی. د مثال په توګه امام او مقتدی بالنسبة و محراب ته واخیستل سي نو امام مخکي تر مقتدیانو دي.

۳: **تقدم رتبي**: د یوه رتبه تر هغه بل لوړه وی لکه د رسول الله ﷺ مخکي والي پر حضرت آدم علیه السلام باندی. لکه په حدیث قدسي کي راځي که ته أي علیه السلام نه وای نو ما به

دغه مخلوقات پيدا کړي نه وای نو ددې څخه معلومه سوه چي د رسول الله ﷺ رتبه تر آدم عليه السلام تر رتبه لوړه ده.

۴: **تقدم رتبي**: متقدم او مخکني شي ته ورستني شي محتاجه وی، او دغه مخکني شي يو تام علت د ورستني شي دپاره نه وی. يعني دغه مخکني شي يو داسي موثر علت په ورستني شي کي نه وي چي دغه مخکني شي د ورستني شي په موجودولو کي کافي وی. لکه مخکي والي د يوه پر دوو باندی.

۵: **تقدم ذاتي**: مخکني شي ته ورستني شي محتاجه وی. او دغه مخکني شي د ورستني دپاره تام علت وی چي په يوازی ده سره ورستني شي وجود پيدا کړی. او دغه ته تقدم بالعلتية هم ويل کيږی. لکه د خالق مخکي والي پر مخلوق باندی يا لکه د لاس د حرکت مخکي والي پر حرکت د کلي او چابي. او دلته د تقدم څخه تقدم زماني مراد دی. ځکه تر امام رازی رحمه الله مخکي علماء متقدمين او تر ده ورسته علماء متأخرين دي. او مصنف رحمه الله تر امام رازی رحمه الله ورسته علماؤ څخه دي. او دا خبره دې د نظر نه غورځول کيږی چي مصنف رحمه الله د متأخرينو څخه په غوره والي سره موصوفه کول د مبالغه څخه خالي نه دی.

**﴿فائده﴾**: لَوْلَاکَ لَوْلَاکَ لَمَا خَلَقْتُ الاَفْلَاکَ" دغه حديث په اعتبار د الفاظ موضوع دي، دغه الفاظ د عليه السلام څخه نه دي ثابت. لکن د دغه معني صحی ده، او په احاديثو سره ثابته ده.

في مسند الفردوس 227/2 : عن ابن عباس مرفوعا : ( يقول الله : وعزتي وجلالي لولاك ما خلقت الجنة ولولاك ما خلقت الدنيا ) اه قال القارئ في الأسرار المرفوعة 295/1: ( حديث لولاك لما خلقت الأفلاك ) قال الصنعاني إنه موضوع كذا في الخلاصة، لكن معناه صحيح فقد روى الديلمي عن ابن عباس مرفوعا : أتاني جبريل فقال: يا محمد لولاك ما خلقت الجنة ولولاك ما خلقت النار، وفي رواية ابن عساكر: لولاك ما خلقت الدنيا ) اه وقال صاحب كشف الخفاء 46/1 : ( أتاني جبريل فقال: يا محمد لولاك ما خلقت الجنة ولولاك لما خلقت النار ) رواه الديلمي عن ابن عمر (كذا قال ولعله ابن عباس)،( (الآثار المرفوعة في الاخبار الموضوعة ج1 ص44)

او دغه ډول دغه دوهم حديث (كنت نبياً وآدم بين الماء والطين) هم موضوع دی

قال السخاوي في المقاصد الحسنة: "وأما الذي على الألسنة بلفظ: (كنت نبياً وآدم بين الماء والطين) فلم نقف عليه بهذا اللفظ. فضلاً عن زيادة: (كنت نبياً ولا آدم ولا ماء ولا طين. [ المقاصد الحسنة ح(837) ]

قال المباركفوري بعد أن نقل كلام السخاوي في التحفة عن المرقاة 56/10: "وقال الزركشي: لا أصل له بهذا اللفظ" وكلام الزركشي نقله أيضاً علي القاري في المصنوع في معرفة الحديث الموضوع ص142، ثم ذكر صاحب التحفة كلام السيوطي، وهو في الدر المنثور في الأحاديث المشتهرة قائلاً: "قال السيوطي: وزاد العوام (ولا آدم، ولا ماء، ولا طين) ولا أصل له أيضاً." و كذا في كشف الخفاء و موضع الباس ١٥٢ / ج٢)

البته د دغه معني ثابته ده.

أخرجه الطبراني في ( مسند الشاميين ج4/ص34) قال:حدثنا أحمد بن محمد بن يحيى بن حمزة، ثنا أبو الجماهر، ثنا سعيد بن بشير، عن قتادة، عن الحسن، عن أبي هريرة: أن نبي الله صلى الله عليه وسلم قال: "كنت أول النبيين في الخلق وأخرهم في البعث".

وأخرجه تمام في (الفوائد ج2/ص15) قال: حدثنا أحمد بن سليمان، ثنا يزيد بن محمد، ثنا أبو الجماهر، ثنا سعيد بن بشير، ثنا قتادة، عن الحسن، عن أبي هريرة: أن نبي الله صلى الله عليه وسلم قال: "كنت أول النبيين في الخلق وآخرهم في البعث".

وأخرجه ابن عدي في (الكامل في ضعفاء الرجال ج3/ص372) قال: ثنا جعفر بن أحمد بن عاصم، ثنا هشام بن عمار، ثنا بقية، حدثني سعيد بن بشير، حدثني قتادة، عن الحسن، عن أبي هريرة، عن النبي صلى الله عليه وسلم في قوله: {وإذ أخذنا من النبيين ميثاقهم} الآية، قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "كنت أول النبيين في الخلق وآخرهم في البعث". قال الشيخ: وهذا يرويه عن قتادة سعيد بن بشير وخليد بن دعلج.

وقال في (الكامل في ضعفاء الرجال ج3/ص49): ثنا جعفر بن أحمد بن عاصم، ثنا هشام بن عمار، ثنا الوليد، ثنا خليد بن دعلج وسعيد، عن قتادة، عن الحسن، عن أبي هريرة: أن النبي صلى الله عليه وسلم قال: "كنت أول الناس في الخلق وآخرهم في البعث".

وأخرجه ابن سعد في (الطبقات الكبرى ج1/ص149) قال: أخبرنا عبد الوهاب بن عطاء، عن سعيد بن أبي عروبة، عن قتادة قال. (ح) وأخبرنا عمر بن عاصم الكلابي، أخبرنا أبو هلال، عن قتادة قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "كنت أول الناس في الخلق وآخرهم في البعث".

وقال السيوطي في (الدر المنثور ج6/ص570): وأخرج ابن أبي شيبة، عن قتادة رضي الله عنه قال: كان النبي صلى الله عليه وسلم إذا قرأ: {وإذ أخذنا من النبيين ميثاقهم ومنك ومن نوح} قال: ذكر لنا أن نبي الله صلى الله عليه وسلم كان يقول: "كنت أول الأنبياء في الخلق وآخرهم في البعث".

وأخرج الحسن بن سفيان، وابن أبي حاتم، وابن مردويه، وأبو نعيم في الدلائل، والديلمي، وابن عساكر من طريق قتادة، عن الحسن، عن أبي هريرة رضي الله عنه، عن النبي صلى الله عليه وسلم في قوله تعالى: {وإذ أخذنا من النبيين ميثاقهم} قال: "كنت أول النبيين في الخلق وآخرهم في البعث". فبدئ به قبلهم.

وقال ابن كثير في (التفسير ج3/ص470): قال ابن أبي حاتم: حدثنا أبو زرعة الدمشقي، حدثنا محمد بن بكار، حدثنا سعيد بن بشير، حدثني قتادة، عن الحسن، عن أبي هريرة رضي الله عنه، عن النبي صلى الله عليه وسلم في قوله تعالى: {وإذ أخذنا من النبيين ميثاقهم ومنك ومن نوح} الآية، قال النبي صلى الله عليه وسلم: "كنت أول النبيين في الخلق وآخرهم في البعث فبدأ بي قبلهم". سعيد بن بشير فيه ضعف، وقد رواه سعيد بن أبي عروبة عن قتادة به مرسلا وهو أشبه، ورواه بعضهم عن قتادة موقوفا. والله أعلم

قال العجلوني في (كشف الخفاء ج2/ص169):(كنت أول النبيين في الخلق وآخرهم في البعث) قال في المقاصد: رواه أبو نعيم في الدلائل. وابن ابي حاتم في تفسيره في ابن لال، ومن طريقه الديلمي عن أبي هريرة مرفوعا، وله شاهد من حديث ميسرة الفخر أخرجه أحمد والبخاري في تاريخه والبغوي وابن السكن وأبو نعيم في الحلية وصححه الحاكم، بلفظ: "كنت نبيا وآدم بين الروح والجسد" وفي الترمذي وغيره عن أبي هريرة أنه قال للنبي صلى الله عليه وسلم: متى كنت نبيا؟ قال: "كنت نبيا وآدم بين الروح والجسد" وقال الترمذي: حسن صحيح، وصححه الحاكم أيضا.

## عبارت

أَثِيرُ الدِّينِ الْأَبْهَرِيُّ، طَيَّبَ اللهُ ثَرَاهُ، وَجَعَلَ الجَنَّةَ مَثْوَاهُ :

## ترجمه

نوم دده اثیر الدین او د ابهر وسېدونکي دي. الله جل جلاله دي دده قبر خوشبوداره وګرزوي، او الله جل جلاله دي جنت دده د قرار ځای وګرزوي. (آمین)

## تشریح

**اثیر:** پر وزن د فعیل دی، په معنی سره د یو شي پر بل باندی خوښولو دی. او په معنی سره د ملګری هم راځي.

أثير – ج ، أثراء : 1 – أثير : مكرم . 2 – أثير : خليص المفضل : « هو أثيري »، أي : الذي أؤثره وأفضله . 3 – أثير بريق السيف . 4 – أثير : عند الأقدمين : سائل لطيف يملأ الفضاء الممتد وراء جو الأرض . 5 – أثير : سائل لا وزن له ، مطاط ، كان علماء الطبيعيات يعتبرونه العامل : الذي ينقل النور والكهرباء .( المعجم الرائد)

**الدین:** دین په لغت کي غاړی هیښولو ته ویل کیږی. او په اصطلاح کي هغه لار ته ویل کیږی پر کومه چي تګ سوی وي، او په هغه سره د الله جل جلاله رسول ﷺ د الله جل جلاله د طرف څخه دپاره د خلکو راتګ کړی وي.

**اثیر الدین:** دا د شیخ لقب دی. اثیر فعیل په معنی د فاعل " نقل کونکي" دی. یا په معنی د مفعول دی "هغه کس چي هغه مختار کیږي. په اول تقدیر ئې معني داده " ددین نقل کونکي". او په دوم تقدیر ئې معني داده "د خاوندانو د دین مختار سوي کس". او دغه تقدیر بناء په تقدیر د مضاف "اثیر اهل الدین" دی. او د مصنف نوم مفضل بن عمر او مشهور په لقب سره دی. او دده نوم مفضل دپلار نوم یې عمر وو، دی په ۶۶۳ ه کي ومړ. دده نسبت و ابهر ته کیږی، دغه د ایران د قزوین او زنجان تر مینځ یو پخواني ښار دی.

**الإبهری:** منسوب بسوی ابهر.

الشيخ الإمام أثير الدين المفضل بن عمر بن المفضل الأبهري السمرقندي (663هـ /1264م) الحكيم، الفيلسوف، والأبهري نسبة إلى أبهر وهي مدينة فارسية قديمة بين قزوين وزنجان.

المفضل بن عمر الأبهري السمرقندي وكنيته أثير الدين عالم فلك، ورياضي، ومنطقي، وحكيم، فيلسوف عاش في الموصل ثم انتقل إلى أربيل سنة 626هـ/1228م كان تلميذاً لعالم نال شهرة عظيمة، هو كمال الدين موسى بن يونس بن محمد بن منعة وقد قال عنه «ليس بين العلماء من يماثل كمال الدين». وكان من خاصة الأمير محيي الدين بن الصاحب شمس الدين الجزري بدمشق (ت 651هـ) بحيث انه استقبل بتدبير الأمير محيي الدين بالجزيرة بعد وفاة والده شمس الدين، وكان الأمير محي الدين فاضلاً محبًا للفضلاء مقربًا لهم مكرمًا لهم يلازمهم أبدًا، ويتحفونه بالفوائد ويؤلفون له التصانيف الحسنة، وقد أهداه الشيخ الأبهري بعضًا من مصنفاته

**طيّب: ښه، د خونده ړک،**

طَيَّبَ يطيِّب ، تطييبًا ، فهو مُطيِّب ، والمفعول مُطيَّب. طيَّبَ الكلامَ : حسَّنه ، جعله طيِّبًا أو طاهرًا عفيفًا . طَيَّبَهُ بِنَفْسِهِ : نَاغَاهُ بِكَلَامٍ يُوَافِقُهُ . طيَّب خاطرَه : أرضاه.

**ثراه: دغه په اصل کي ثرى دى، نمناکه خاوره،**

ثرَى: ( اسم )، الجمع : أثْراءٌ ، الثَّرَى : الأرض. النَّدى ، التُّراب النَّدِي.

طيب الله ثراه : أي جعل الله الأرض التي دفن فيها طيبة حانية عليه . (المعجم: مصطلحات فقهية)

**مثواه: دغه په مثوى دى، مصدر ميمي او يا اسم مکان دى، ځاى د قرار ته ويل کيږى.**

مثوى: ( اسم ) الجمع : مَثَاوٍ ، مَثَاوِي. مصدر ميميّ من ثَوَى بـ / ثَوَى في /// اسم مكان من ثوَى بـ / ثوَى في : مأوى ، مقرّ ؛ منزل أو موضع يُقام به /. المَثْوَى الأخير : القَبْر.

**خلاصه حواشي ايوبي**

دين مأخوذ د دان يدون دينا څخه دى. او دغه په لغت کي عاجزى، اطاعت کولو او غاړى هيښولو ته ويل کيږى او په اصطلاح کي هر هغه شي ته ويل کيږى چي په هغه سره د الله جل جلاله عبادت کول کيږى. يعني شرعي احکام.

دان دِينًا ، ودِيانةً ، دَانَ ، يَدُونُ ، دَوْنٌ ، دُونٌ ، فهو دائن ودُون ، والمفعول مَدُون له/// . دَانَ الرَّجُلُ : خَضَعَ ، ذَلَّ ./. دَانَ الوَلَدُ : أَطَاعَ دَانَ لَهُ

شرعي احکام په دې حيث چي ددوى طاعت کول کيږي دغه ته دين ويل کيږي او په دې حيث چي دوى په ورقو کي نويشته کيږى دغه ته بيا ملت ويل کيږ ي . لهذا د دين او ملت تر مينځ اعتبار فرق وجود لرى.

عبارت

نَحْمَدُ اللهَ تَعَالَى عَلَى تَوْفِيقِهِ .وَنَسْأَلُهُ هِدَايَةَ طَرِيقِهِ .وَنُصَلِّي عَلَى سَيِّدنَا مُحَمَّدٍ وَعِتْرَتِهِ أَجْمَعِينَ.

ترجمه

موږ د الله جل جلاله پر توفيق باندې دده ستيانه او تعريف کوو. او موږ دالله جل جلاله څخه سوال کوو چې دى موږ ته خپله لار و ښئي. او موږ دده څخه غواړو چې موږ ته په خپل تحقيق سره د حق الهام وکړي. او موږ د الله پر رسول ﷺ او دده پر اولاد درود وايو.

تشريح

**حمد** په لغت کي د يو چا په ژبه سره دده په ښه افعالو باندي "عام تر دې دغه افعال متعدى وي او که نه وي" تعريف کولو ته حمد ويل کيږي. او په اصطلاح کي هغه کار کولو ته ويل کيږي چي د هغه څخه د منعم "انعام کونکي" تعظيم معلوميږي.او دغه کار کولو سبب د منعم انعام کول وى.

**توفيق:** اتباع کول، او په اصطلاح کي د مقصود اسباب ترلاسه کېدل.

**هدايت:** لار ښوول، يا مقصود ته رسول.

**الهام:** د يو چا په زړه کي يو خبره اچول عام تر دې خير او که د شر خبره وى. که چيرى ښه خبره وى نو هغه د الله جل جلاله يا د ملکو لخوا وى، او دغه ته په اصطلاح کي الهام ويل کيږى. او که د بدو خبره وى نو هغه بيا د شيطان د طرفه وى او هغه ته وسوسه ويل کيږى.

**بتحقيقه:** يعني هغه شي چي د الله جل جلاله په وړاندى حق وى.

**نصله:** صيغه متکلم مع الغير فعل مضارع. دغه د تصلية او صلوة څخه دى . او صلوة: دغه په وزن د "**فَعلَة** په حرکت سره د عين يا په سکون سره د عين" او د " **صلى** " څخه اخيستل سوي دى. لکه " زکوة" چي د " زکى" څخه اخيستل سوي دى. او دغه يو داسي اسم دى چي په ځاى د مصدر استعماليږي" صلى، **يصلى** يعني لمونځ ئې وکړي لمونځ کونه" او دلته په معني سره ددعاء " يعني د رحمت د طلبولو دپى "څه وخت چي ئې نسبت و بندګانو ته وسي. او

په معني د رحمت دی څه وخت چي ئې نسبت و الله ﷻ ته وسي.او په معني سره د طلب د مغفرت دی څه وخت چي ئې نسبت و ملکو ته وسي.

صلّى ( فعل ) صلّى / صلّى على يصلّي ، صَلّ ، صَلاةٌ ، فهو مُصَلّ ، والمفعول مُصَلّى عليه . صلّى الشّخصُ : أدّى الصّلاةَ .صلّى الفَرَسُ في السّباق : جاءَ مُصلّياً ؛ وهو الثاني في السّباق . صلّى فلانٌ : دعا .

**رسوله:** دغه يو مرکب لفظ د رسول او د ضمير څخه دی. رسول په نيز د جمهورو هغه کس دی چي ده ته کتاب او يو نوي شريعت ور کول سوي وي.او دی خاص تر نبي دي.البته علامه ابن تيميه رحمه الله تعالی په خپل کتاب النبوات کي ويلي دی: رسول هغه کس دي چي دی د خپل امت د اصلاح لپاره راستول سوي وي. او دديې سره سره دی د هغه چا په مقابله کولو سره امر سوي وي چي هغه دده حکم نه مني. او نبي هغه دی چي دی فقط د خپل امت د اصلاح لپاره راستول سوي وي. او ده ته د مقابلې امر سوي نه وي.

## خلاصه حواشي ايوبي

مصنف رحمه الله د الله جل جلاله ستاينه او تعريف د جمله اسميه په صورت کي وړاندی نه کړی بلکه د جمله فعليه په صورت کي يې وړاندی کړي، او حال دا چي جمله اسميه تر جمله فعليه پر ستايني د الله جل جلاله زيات دلالت کوي، ځکه جمله اسميه پر دوام او همېشگي دلالت کوی په خلاف د جمله فعليه. نو د جمله فعليه په صورت کي د راوړلو څه وجه ده؟

**اول جواب:** اصل په جملو کي جمله فعليه ده، نو پر دغه اصل باندی د علم کولو په وجه مصنف رحمه الله جمله فعليه خپله کړه.

**دوم جواب:** مصنف رحمه الله په جمله فعليه سره دديې خبری څخه د عاجزی اظهار کړی دي چي زه پر طريقه د دوام د الله جل جلاله ستاينه بيانولای نسم،ځکه پر انسان مرګ راځي، نو په مرګ سره دده ژوند پای ته رسي، نو څومره چي دده عمر وي دومره دی ستاينه ادا کولای سي، او ده ته چي څه وخت مرګ راسي نو بيا دی د حمد ادا پنه نسي کولای، ځرنګه د انسان ژوند دوامداره نه وی نو په دې وجه دی په طريقه د دوام حمد ادا کولای نسي، نو دی د دوامداره حمد د اداېني څخه عاجزه سو، او ددغه عاجزي اظهار کول پخپله حمد د الله جل جلاله دی. ځکه حمد د الله جل جلاله د کمالي صفاتو اظهار کول دی، او دلته مصنف ددغه اظهار دا دول کړی دي چي ده جمله فعليه راوړل، اشاره يې و دې ته وکړل چي داسي حمد وجود نه لری چي

هغه د الله جل جلاله د شان سره مناسب وی، ځکه دنیا ختمېدونکې ده، نو اداېنه د حمد هم ختمېدونکي ده مګر الله جل جلاله همېش وو او همېش به وی، نو په غیر دوام داره حمد سره د دوامداره ذات ستاینه ادا کېدای نسي. او د جمله اسمیه په صورت کي ددغه عجز اظهار ترسره کېدای نسو.

**درېیم جواب:** جمله فعلیه پر نوی والي باندی دلالت کوی، ځکه د جمله فعلیه یو جزء فعل وی، او د فعل یو جزء زمانه وی، اوپه زمانه کي نوی والي وی، هر راتلونکي ګړی د مخکني ګړی څخه نوی وی، نو په جمله فعلیه سره ادا سوی حمد هم هر ګړی نوی وی، او په هر نوی شي کي خوند وی، نو په دغه حمد کي هم خوندی وی، ددغه خوند تر سره کولو په خاطر جمله فعلیه راوړل سوه.

**څلورم جواب:** په یوه ډول د یو شي دوام داره کول پر نفس سخت نه وی، څومره چي یو شي هر لحظه په نوی نوی ډول سره تر کول سخت وی، یو شي په دوامداره طریقه سره ترسره کول دغه عادت جوړ سي، او په نوې نوې طریقه سره کول عادت نه جوړیږی، کوم شي چي عادت وی د هغه په کولو کي پر نفس سختي نه وی، او هر ګړی چي نوی نوی ډول تر سره کیږید هغه په کولو کي سختي وی، څرنګه د حمد اداېنه عبادت دی، په کوم عبادت کي سختي وی په هغه کي ثواب ډېر وی، نو حمد د جمله فعلیه په صورت کي په اداېنه کي یې ثواب ډېر دی، په دې وجه جمله فعلیه راوړل سوه.

**توفیق:** په لغت کي د یو چا په ښه یا بد کار کي کومک کولو ته ویل کیږی، او په اصطلاح کي د بنده په حق کي چي کوم شي عند الله خیر او ښه وی، د هغه موافق د انسان اسباب موافق ګرزولو ته ویل کیږی. د مثال په توګه د لمانځه دپاره چي د کومو اسبابو ضرورت وی هغه د لمانځه موافق ګرزول، د خیرات دپاره چي د کومو اسبابو ضرورت وی هغه د خیرات موافق ګرزول، لهذا ددغه اسبابو موافق ګرزولو ته توفیق ویل کیږی.

**﴿فائده﴾**: ۱: د طاعت قدرت په انسان کي پیدا کول. ۲: د نیکي لار آسانه ول او د ګناه لار مشکلول: ۳: انساني تدبیر د تقدیر موافق ګرزول.

**سوال:** اسباب د بنده کوم شیان دي؟

**جواب:** لاس، سترګه، پوښه او دغه ډول نور انساني اعضاء، دغه اسباب په دې وجه دي چې په دغه ټولو سره د خیر کارونه تر سره کیږي. د مثال په توګه د جمعې د لمانځه و ظرف ته تګ کول، د قرآن تلاوت کول. د علم حاصلول، حلاله نفقه ګټل او دغه ډول نور.

**سوال:** مصنف رحمه الله د توفیق په تعریف کې د "عند الله" قید ولې اضافه کړي؟

**جواب:** په دې وجه چې خیر دوه قسمونه لري.

۱: د بنده په وړاندې خیر وي لکه زناء کول دا کار فاسقان د خپلو ځانونو لپاره خیر او ګټه ور بولي، هم په دغه وجه یې تر سره کوي، او دغه ډول نور ناروا کارونه کول.

۲: د الله جل جلاله په وړاندې خیر. او دغه خیر محض عبادت کېدای سي نه ګناهونه، لهذا توفیق د بنده په وړاندې چې کوم خیر دی د هغه موافق اسباب ګرزولو ته توفیق نه ویل کیږي بلکه چې د الله په وړاندې خیر وي د هغه موافق اسباب ګرزولو ته توفیق ویل کیږي.

**سوال:** " هداية طريقه" دا څه ترکیبي حیثیت لري؟

**جواب:** دغه د "نسأل" لپاره مفعول دی، او دغه بیا مضاف و "طريق" ته دی.

**سوال:** هدایت و طریق ته مضاف ګرزول صحت نه لري، ځکه هدایت و لار ښوولو ته ویل کیږ ی، لهذا د هدایت په مفهوم او معنی کې لار پرته ده نو ددې ورسته بیا راوړل دغه استدراک دی کوم چې باطل دی؟

**جواب:** ورسته تر هدایت لفظ د طریق راول بناء پر تجرید د هدایت د معنی څخه د لاری دی. او تجرید دې ته ویل کیږي چې مخکني لفظ د بعضې معنی څخه ددغه لفظ خالي و ګرزول سي، لکه هدایت و لار ښوولو ته ویل کیږي اوس په دې کې تجرید داډول وسو چې دی د لاری څخه خالي و ګرزول سو نو اوس یې معنی لار ښوول ده.

**سوال:** علم منطق آیا د علم الحكمة یو قسم دی؟

**جواب:** په دې کې اختلاف تر سره سوی دی، بعض یې قسم بولي او بعض یې بیا نه بولي د دواړو ډلو دلائل په میبذی کتاب کې ذکر سوي دي.

**سوال:** حکماء پر څو قسمه دي؟

**جواب:** حکماء دوه قسمونه لري. او یو هم ددوی څخه د اسلام پر لار روان نه دي

۱: **اشراقين:** خپلي خبري او مدعاگاني په روښانيتا دزړونو سره معلوموي، او پر هغو باندی علم په خپل وجدان سره راولي. او په دغه طريقه سره و خپلو شاگردانو ته ښوونه تر سره کوي. افلاطون اشراقي دي.

۲: **مشائين:** په عقلي دلائلو سره مدعاگاني ثابتوی او په دغه طريقه سره ښوونه تر سره کوي. او ارسطو مشائي وو. او ده ته د اول ښوونکي لقب ورکول سوی دی. ابو نصر فارابي ته بيا د دوهم معلم لقب ورکول سوی دی. او ابو علي ابن سينا ته بيا د دريیم معلم لقب ورکول سوی دی.

هغه علماء چي اتباع د اسلام او شريعت کوی هغوی هم دوه رنگه دي.

۱: **صوفيان حضرات:** په صفائي سره د زړونو تعليم و نورو ته ورکوي.

۲: **متکلمين:** خپلي مدعاگاني په نقلي او عقلي دلائلو سره ثابتوي. متکلمين حضرات بيا دوه قسمونه لري.

۱: **معتزله:** دوی مدار د نصوصو عقل بولي يعني کوم نص چي د عقل موافق وی هغه معتبر دی که نې معتبر نه دی.

۲: **اهل السنت والجماعت:** مدار د نصوصو عقل نه بولي، بلکه دوی وايي : کوم نص د عقل موافق وي نو ښه دی، او که موافق نه وی نو عقل پاتيږی پر نص عمل تر سره کيږی. او دوی هم پر دري قسمه دي.

۱: **ماتريديه:** د ابو المنصور ماتريدی رحمة الله عليه اتباع کونکي. او احناف په باب کي د اعتقاد دده اتباع کونکي دي.

۲: **اشاعره:** دوی د ابو الحسن الاشعری رحمة الله عليه اتباع کونکي دي. شوافع حضرات په باب کي د اعتقاد دده اتباع کونکي دي.

۳: **سلفيه:** د امام احمد بن حنبل رحمه الله په باب کي د اعتقاد اتباع کونکي دي. دغه تر امام احمد بن حنبل رحمه الله پوری صحی وه، ورسته بيا په دوو خبرو کي " الرحمن علي العرش استوی" او په يوه بله کي و مجسمو ته مائله سوه. دغه سلفيان په عربو مملکتونو کي دي. او پاته

زموږ او ستاسو په منطقو کي چي د سلفیانو په نامه سره ذي دغه تقلید نه مني دغه د جهنم په اور ککړ دی. (نور د مفتي عبدالله دیوبندي صاحب پنجپیریت و سلفیت ولولي)

**رسول:** رسول خاص تر نبي دي، ځکه رسول د شرعي احکامو تبلیغ کونکي وي او خاوند د نوی شریعت وي. او نبي هم د احکامو رسونکي او تبلیغ کونکي وي، مګر دده خاوندوالي د نوی شریعت شرط نه دی.

**هدایت:** متقدمین علماء د هدایت په تعریف کي اختلاف تر سره کړی دي.

**معتزله:** و مقصود ته د رسولو نوم هدایت دی.

**پر دغه مذهب باندی اعتراض:** هدایت په معني سره مقصود ته د رسوني څخه دی نو ددې موافق ددې الهي قول "وَأَمَّا ثَمُودُ فَهَدَيْنَاهُمْ فَاسْتَحَبُّوا الْعَمَى عَلَى الْهُدَى.(فصلت: ۱۷)" معني به دا وګرزی "ثمودیان موږ و مقصود ته ورسول، تر هغه ورسته بیا دوی د هدایت پر ځای ګمراهي خوښه کړه"، او حال دا چي دغه معني صحت نه لری، ځکه یو کس چي و مقصود ته ورسیږی نو بیا دی ګمراه کېدای نسي، ځکه دی مقصود ته ورسېدی نو اوس به په کوم شي کي ګمراه سي، ګمراه کېدل خو و مقصود ته په رسېدلو کي وو، نو ثمودیان چي مقصود ته ورسېدل بیا دوی څرنګه ګمراهان سوه، او حال دا چي هدایت په ذکر سوی معني په اعتبار سره د آیت معني هم دا ګرزی چي و مقصود ته د رسېدو ورسته دوی ګمراهان سوه.

**سوال:** دا خو کېدای سي چي یو کس و مقصود ته ورسي بیا ګمراه سي لکه یو کس مسلمان سي بیا مرتد العیاذبالله وګرزی، نو دلته هم داسي کېدای سي چي دوی هدایت یافته سوی و ورسته تر هغه بیا ګمراهان سوی وي؟

**جواب:** اصل خبره دلته دا ده چي په تاریخ کي دا خبره ثبوت ته رسېدلې نه ده چي ثمودیان اول هدایت یافته سوي ول ورسته بیا ګمراهان سوی وه. څرنګه ددوی و مقصود ته رسېدل ثابت نه دی نو بیا دوی څرنګه هدایت یافته ګرزول کیږی. نو معلومه سوه چي دلته هدایت په دې معني سره نه دی چي مقصود ته رسېدل. بلکه په معني سره د لار ښوولو دی.

**د معتزلو د طرف څخه جواب:** دلته هدایت پخپله حقیقي معني سره مراد نه دی بلکه په مجازی معني سره مراد دی یعني اسباب د هدایت، نو معني دا سوه چي موږ و ثمودیانو ته د هدا

يت اسباب راليږلي وه، مګر دوی هغه اسباب په کار وانه چول، د هغه پر ځای يې ګمراهي خپله کړل. او اسباب د هدايت رسول، کتاب او عقل دي، او دغه ټوله دوی ته ورکول سوی وه.

**جمهور اشاعره:** د هغه لاری ښوول کوم چي و مقصود ته رسېدلې وی، لهذا هدايت لار ښوولو ته ويل کيږی عام تر دې کس و مقصود ته ورسي او که نه.

**سوال:** دغه معني صحت نه لری، ځکه په دې الهي قول کي "إِنَّكَ لَا تَهْدِى مَنْ أَحْبَبْتَ وَلَكِنَّ اللَّهَ يَهْدِى مَن يَشَاءُ وَهُوَ أَعْلَمُ بِالْمُهْتَدِينَ.(القصص: ۵۶)" يعني بېله شکه ته هغه چا ته لار ښوولای نسې کوم چي ستا خوښه وی. او حال دا چي دغه معني صحت نه لری، ځکه په دغه آيت سره خطاب و رسول الله صلی الله عليه و سلم ته دی، نو ددې ذکر سوی معني مطابق د رسول الله صلي الله عليه و سلم څخه د لاری ښوولو نفي و سولې، او حال دا چي د رسول الله ﷺ بعثت د دغه لار ښوولو لپاره سوی دی. نو بيا څرنګه د هغه کار نفي کيږی کوم چي د رسول الله ﷺ بعثت د هغه کار د پاره سوی دي، نو معلومه سوه چي هدايت په معني سره د لار ښوولو نه دی، بلکه په معني سره و مقصود ته د رسولو دي؟

**جواب:** لار ښوول دوه قسمونه لری. ۱: **ظاهری** يعني په ښکاره توګه لار ښوول. دغه د انسان په طاقت کي سته چي چا ته لار وښئي، او د رسول الله ﷺ هم دغه فريضه ده چي خلکو ته ښه لار و ښوي. او وېښول.

۲: **حقيقي** يعني داسي لار ښول چي په هغه سره کس و مقصود ته و رسي. لهذا پر لار ښولو اثر مرتبېدل چي مقصود ته رسېدنه ده دغه د انسان په طاقت څخه وتلې خبره ده. نو په آيت مبارکه کي د رسول الله ﷺ څخه نفي د لار ښوولو سوی دی دا هغه لار ښوونه ده پر کوم چي و مقصود ته رسېدل مرتبيږی. او ظاهری لار ښوونه ځني نفي سوې نه دی، چي بيا اعتراض وارد سي. لهذا رسول الله ﷺ په ظاهره لار ښئي، مګر پر دې اثر الله جل جلاله مرتبوي، دا داسي ده "مَا رَمَيْتَ إِذْ رَمَيْتَ وَلَكِنَّ اللَّهَ رَمَى.(الانفال: ۱۷)" يعني تا ويشتل نه دی کړی هغه وخت چي تا ويشتل وکړه بلکه الله جل جلاله ويشتل کړی دي. اوس دلته په ښکاره توګه ويشتل د الله جل جلاله رسول وکړه مګر پر دغه ويشتولو اثر چي د هر کافر و سترګو ته رسول وه دا رسول

الله ﷺ نه بلکه الله جل جلاله وکړه، لهذا ويشتل رسول الله وکړل، او اثر پر دي الله جل جلاله مرتب کړي، نو دلته الله جل جلاله پر ويشتولو چي اثر دی هغه نفي کړي دي هم دغه ډول په "انک لاتهدی من احببت" کي دی.

**اول سوال:** هدايت د ضلال مقابل راځي. لکه الله ﷻ فرمائي "اولئک الذين اشتروا الضلالة بالهدی". اوس دلته د هدايت مقابل ضلال راغلي دي. او په ضلال کي نه رسېدل و حق او مطلوب ته معتبر دی. نو دده په مقابل کي رسيدل و حق ته معتبر دی. اوس که چيري په هدايت کي و حق ته رسيدنه معتبر نه سي نو د هدايت او د ضلال په ما بين کي تقابل نه راځي. ځکه دغه ډول ممکن دی چي ضلال او هدايت سره يو ځای سي داډول چي يو سړی ته لار و ښول سي مګر دغه سړی په دغه حق لار باندي و لاړ نه سي . او حق ته نه و رسی. نو دغه هدايت او هم ضلال دی. د هدايت او د ضلال په ما بين کی تقابل نه راتلل باطل دی. نو دا معلومه سوه چي هدايت نوم و حق و رسولو ته دی.

**اول جواب:** دلته دوه شيان دي. ۱: هدايت، لار ښولو ته ويل کيږی. ۲: هدی، و حق ته د رسېدلو توفيق ورکول او په دغه کي يې کومک کول، يعني مقصود ته رسېدل، نو ضلال مقابل هدی دی نه د هدايت.

**دوهم جواب:** هدايت دوې معناګاني لري. ۱: حقيقي معني : لار ښوول. ۲: مجازی معني: مقصود ته رسول. لهذا هدايت مقابل د ضلال دی په اعتبار د دويمي معني نه داولي.

**﴿فائده﴾** : د هدايت او هداة تر مينځ فرق:

المرتبة الثانية: هداية الدلالة والبيان والإرشاد:

وهذا النوع هو وظيفة الرسل والكتب المنزلة من السماء، وهو خاصٌّ بالمكلَّفين، وهذه الهداية هي التي أثبَتَها لرسوله – صلَّى الله عليه وسلَّم – بقوله: ﴿وَإِنَّكَ لَتَهْدِي إِلَى صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ﴾ [الشورى: 52]، كما أنَّ هذا النوع من الهداية أخصُّ من التي قبلها، فهي مصدر التكليف ومَناطُه، وبها تقوم حُجَّة الله على عِباده؛ فإن الله – تعالى – لا يُدخِل أحدًا النار إلا بعد إرسال الرسل الذين يُبيِّنون للناس طريق الغيِّ من الرشاد: ﴿وَمَا كُنَّا مُعَذِّبِينَ حَتَّى نَبْعَثَ رَسُولاً﴾ [الإسراء: 15]، ﴿أَوْ تَقُولَ لَوْ أَنَّ اللَّهَ هَدَانِي لَكُنْتُ مِنَ الْمُتَّقِينَ﴾ [الزمر: 57]، ﴿رُسُلاً مُبَشِّرِينَ وَمُنْذِرِينَ لِئَلاَّ يَكُونَ لِلنَّاسِ عَلَى اللَّهِ حُجَّةٌ بَعْدَ الرُّسُلِ وَكَانَ اللَّهُ عَزِيزًا حَكِيمًا﴾ [النساء: 165]، يقول ابن كثير: "أي: إنه – تعالى – أنزَلَ كتبه وأرسَلَ رسله بالبشارة والنذارة، وبيَّن ما يحبُّه ويَرضاه ممَّا يكرهه ويأباه؛ لئلاَّ يبقى لمُعتَذِر عذر؛ ﴿وَلَوْ أَنَّا أَهْلَكْنَاهُمْ بِعَذَابٍ مِنْ قَبْلِهِ لَقَالُوا رَبَّنَا لَوْلاَ أَرْسَلْتَ إِلَيْنَا رَسُولاً فَنَتَّبِعَ آيَاتِكَ مِنْ قَبْلِ أَنْ نَذِلَّ وَنَخْزَى﴾ [طه: 134].

وقد ثبت في الصحيحين عن ابن مسعود – رضِي الله عنه – قال: قال رسول الله – صلَّى الله عليه وسلَّم – : ((... لا أحد أحب إليه العذر من الله، من أجل ذلك بعث النبيين مُبشِّرين ومُنذِرين)).

والله – تعالى – لم يمنع أحدًا هذه الهداية، ولم يَحُلْ بين أحدٍ من خلقه وبين هذه الهداية، بل خلَّى بينهم وبينها، ومَنَحَهم من الوَسائل والأدوات التي تُساعِدهم على تقبُّلها والاستِفادة بها؛ كالعقل والفطرة، وأقام لهم بذلك أسباب الهداية ظاهرة وباطنة، ومَن حرَمَه من خلقه بعضًا من هذه الأدوات والوسائل؛ كزوال العقل أو الصِّغَر أو المرض – فقد حطَّ عنه من التكاليف بحسَب ما حرَمَه من ذلك؛ قال – تعالى – : ﴿لَيْسَ عَلَى الأَعْمَى حَرَجٌ وَلاَ عَلَى الأَعْرَجِ حَرَجٌ وَلاَ عَلَى الْمَرِيضِ حَرَجٌ﴾ [النور: 61]، وقال – صلَّى الله عليه وسلَّم – : ((رُفِع القلم عن ثلاث: عن النائم حتى يستَيقِظ، وعن الصبي حتى يَبلُغ، وعن المجنون حتى يفيق))، كما اتَّفق رِجال الأصول على أنه: "إذا أخَذَ ما وهب انقطَع ما وجب".

وهذه الهداية لا تَستَلزِم حُصُول التوفيق واتِّباع الحقِّ من العِباد؛ بدليل أنَّ بعض الناس آمَن بدعوة الرسل وبعضهم كفر بها، ولكنَّها سبب في حصول الاهتِداء، والسبب هنا قد اكتمَل بإرسال الرسل ووصول دعوة وبلاغ الرسل إلى أُمَمِهم، فلا نقص إذًا في السبب، إنما النقص يرجع إلى العبد الذي لم يَقبَل ولم يَنتَفِع بما جاءَتْ به الرسل بسبب فساد الفطرة وطغيان المادة؛ قال – تعالى – : ﴿وَأَمَّا ثَمُودُ فَهَدَيْنَاهُمْ فَاسْتَحَبُّوا الْعَمَى عَلَى الْهُدَى فَأَخَذَتْهُمْ صَاعِقَةُ الْعَذَابِ الْهُونِ بِمَا كَانُوا يَكْسِبُونَ﴾ [فصلت: 17]، ﴿هديناهم﴾؛ أي: بَيَّنَّا لهم ودعوناهم، فاستحبُّوا العَمَى على الهدى؛ أي: بصَّرناهم وبيَّنَّا ووضَّحنا لهم الحقَّ على لسان نبيِّهم صالح، فخالَفُوه وكذَّبُوه وعَقَروا ناقة الله – تعالى – التي هي برهان على صدق نبيِّهم، فعدم الاهتِداء واقعٌ بسبب القُصُور الحادث في المحلِّ القابِل للأثر وهو الإنسان، وليس في قُصُور السبب، فكانت النتيجة أنْ أضلَّهم الله عقوبة على ترْك الاهتِداء وعدم الاستِجابة لما جاءَتْ به الرسل.

وهذا شأن الله في كلِّ نعمة أنعمَ بها على عباده إذا كفروا؛ فإنه يسلبها منهم بعد أن كانتْ حظًّا لهم: ﴿ذَلِكَ بِأَنَّ اللهَ لَمْ يَكُ مُغَيِّرًا نِعْمَةً أَنْعَمَهَا عَلَى قَوْمٍ حَتَّى يُغَيِّرُوا مَا بِأَنْفُسِهِمْ وَأَنَّ اللهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ﴾ [الأنفال: 53]، والقرآن الكريم قد قصَّ علينا ما كان من الأُمَم التي أرسل الله إليها رسلاً فلم تستَفِد بهَدْيِهم؛ فقال يصف حالهم في نار جهنم: ﴿كُلَّمَا أُلْقِيَ فِيهَا فَوْجٌ سَأَلَهُمْ خَزَنَتُهَا أَلَمْ يَأْتِكُمْ نَذِيرٌ * قَالُوا بَلَى قَدْ جَاءَنَا نَذِيرٌ فَكَذَّبْنَا وَقُلْنَا مَا نَزَّلَ اللهُ مِنْ شَيْءٍ إِنْ أَنْتُمْ إِلاَّ فِي ضَلاَلٍ كَبِيرٍ﴾ [الملك: 8 – 9]، فالذي حدث من الله هو الهداية، وكان من العبد التكذيب والضلال، رغم أنه كان في مَقدُورِه أن يَتَّبِع الرسول ويُؤمِن بما جاء به، وليس ذلك شيئًا خارجًا عن قدرته أو فوق طاقته، ففي مثل هذه الحالة فإن الله يُخلِّي بين العبد ونفسه، والنفس بطبعها أمَّارة بالسوء إلا ما رحم ربي، فإذا وُكِل الإنسان إلى نفسه قادَتْه إلى الهلاك، وهو بذلك يكون قد قُطِع عنه توفيقُه، ولم يُرِد الله أن يُعِينَه على نفسه ليُقبِل العبد بقلبه إلى الله، وهو – سبحانه – إذا فعَل ذلك بأحدٍ من خلقه فليس ظالمًا؛ لأنه لم يسلبه حقًّا له، ولم يمنعه من الدلالة أو البيان، وهذا في مَقدُور العبد فعله، ولكنَّه حرَمَه التوفيق والسداد عدلاً منه في خلقه.

المرتبة الثالثة: هداية التوفيق والإلهام والمعونة: وهذه المرتبة أخصُّ من التي قبلها، فهي هداية خاصَّة تأتي بعد هداية البيان؛ تحقيقًا لقوله – تعالى – : ﴿وَيَزِيدُ اللهُ الَّذِينَ اهْتَدَوْا هُدًى﴾ [مريم: 76]، فلا تكون لملك مُقرَّب ولا نبي مُرسَل، إنما هي خاصَّة بالله وحدَه، فلا يقدر عليها إلا هو، ولا يُعطِيها إلا لِمَن حقَّق شروطها واستَوفَى أسبابها.﴿قَدْ جَاءَكُمْ مِنَ اللهِ نُورٌ وَكِتَابٌ مُبِينٌ * يَهْدِي بِهِ اللهُ مَنِ اتَّبَعَ رِضْوَانَهُ سُبُلَ السَّلاَمِ وَيُخْرِجُهُمْ مِنَ الظُّلُمَاتِ إِلَى النُّورِ بِإِذْنِهِ وَيَهْدِيهِمْ إِلَى صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ﴾ [المائدة: 15 – 16].

وهذا النوع من الهداية هو الذي نَفَاه الله عن نبيِّه – صلَّى الله عليه وسلَّم – : ﴿إِنَّكَ لاَ تَهْدِي مَنْ أَحْبَبْتَ وَلَكِنَّ اللهَ يَهْدِي مَنْ يَشَاءُ وَهُوَ أَعْلَمُ بِالْمُهْتَدِينَ﴾ [القصص: 56]، ﴿إِنْ تَحْرِصْ عَلَى هُدَاهُمْ فَإِنَّ اللهَ لاَ يَهْدِي مَنْ يُضِلُّ وَمَا لَهُمْ مِنْ نَاصِرِينَ﴾ [النحل: 37].

**دویم سوال:** د انسان صفت په دی سره کیږي" چي دی مهتدی او هدایت یافته دی". دغه ډول د سړي صفت په دې سره کیږي" انسان مهدی او ده ته هدایت سوی دی".نو اوس د دلیل خلاصه داده " كون الانسان مهديا مدح له بالضرورة "وانسان ته هدایت کیدنه د انسان لپاره مدحه ده"و لا شی من كون الانسان مدلولا على الطريق الموصل مدحا"او انسان ته هغه لار ښونه کوم چي حق ته رسیدونکي وی دغه ددوی لپاره مدح نه ده.ځکه که چیري هدایت لار ښول سي نو

هغه کس چي هغه ته د حق لار ونښول سي مګر دی په هغه لار و لاړ نه سي بلکه غلط و لاړ سي نو دغه کس د مدحي لائق نه دی بلکه دی د ذم لائق دی .ځکه ددې سره سره چي ده ته حق لار و ښول سه مګر بیا هم دی په هغه نه ولاړی.نو دغه کس د ذم مستحق دی. لهذا صرف یو کس ته د حق لار ښونه دغه د دغه کس لپاره مدحه نه ده. لهذا مدح صرف په هغه صورت کي کیږي چي دی و حق ته و رسیږي نو حق ته رسیدل ښه کار دی . او د ښه کار کونکي د مدحي قابل دی.نو د مهدی مدح ویولو ځخه دا معلومه سوه چي په هدایت کي رسیدنه و حق ته معتبر دی.

**جواب:** کوم کس چي و بل کس ته لار وښئي نو هغه د ستاینې لائقه دی چي د هغه تعریف وسي، (ځکه دده د په وس چي څومره پورا وه هغه ده تر سره کړه) عام تردې دغه کس و مقصود ته ورسي او که نه، البته د رسېدو په صورت کي چي کومه ستاینه دده کړل کیږي هغه تکړه تر هغه ستاینې وی کوم چي د نه رسېدو په صورت کي کړل کیږي.

**دریم سوال:** اهتداء د هدایت مطاوِع دی. او ویل کیږي "هدیته فاهتدی" ما ده ته هدایت و کړی او دی هدایت یافته سو. اوس هدایت مطاوِع او اهتداء مطاوَع دی. او په اهتداء کي وصول و حق ته معتبر دی نو اوس که چیري په هدایت کي معتبر نه سي نو داسي کیده به ممکن سي چي یو کس ته د حق د لاري ښوونه وسي خو هغه په دغه لار ولاړ نه سي او خطاء سي. نو په دغه صورت کي هدایت سته خو اهتداء نسته . ځکه په هدایت کي رسیدنه معتبر وي. نو په دغه وخت کي مطاوَع د مطاوِع څخه مخالف سو .او د مطاوَع د مطاوِع څخه مخالف کیدنه باطله دی. نو دا معلومه سوه چي په هدایت کي و حق ته رسیدنه معتبر ده.

**اول جواب:** موږ دا خبره نه منو چي اهتداء مطاوع د هدایت دی، که چیری وای نو بیا به ستا اعتراض وارد سوی وای.

**دوم جواب:** که چیری موږ یې مطاوعت ومنو نو بیا جواب دادی چي مطاوع کله کله د خپله اصله څخه مخالف راسي، لکه ویل کیږی ما هغه کس ته امر و کړی نو هغه زما امر نه و مني. نو امر منل مطاوع د امر کولو دی مګر مخالفه ځني راغلي دی.

﴿**فائده**﴾: بیان د مطاوَعت: **لغوی**: موافقت او تابعداری کونه. او په اصطلاح کي عبارت" **کون الفعل دالا علی اثر حصل من تأثیر فعل آخر متعدیا**"دی. د فعل په هغه اثر باندي دلالت کول دی چي هغه د فعل متعدی د اثر کولو څخه حاصل سي. ددې خلاصه داده چي د یو داسي فعل لازمي راوړل دی چي هغه د فعل متعدی د اثر په قبولیت باندي دلالت کوی. لکه ویل کیږي "**کسرته فانکسر**"مادی مات کړی او دی مات سو" د غه فعل لازمي ته مطاوَع او فعل متعدی ته مطاوِع ویل کیږي.

## عبارت

وَبَعْدُ : فَهٰذِهِ رِسَالَةٌ فِي المَنْطِقِ أَوْرَدْنَا فِيهَا مَا يَجِبُ اسْتِحْضَارُهُ لِمَنْ يَبْتَدِئُ فِي شَيءٍ مِنَ الْعُلُومِ .مُسْتَعِينًا بِاللهِ تَعَالى، إنَّهُ مُفِيضُ الْخَيْرَ وَالجَودِ «إِيسَاغُوجِي »

## ترجمه

ورسته تر دې دغه په منطق کې يوه داسې رساله ده چې موږ په دې کې هغه شيان راوړي دي د کوم حاضرول په ذهن کې د هغه کس دپاره ضروري دی کوم چې په يو علم کې د علومو څخه شروع کوی، د الله جل جلاله څخه د کومک د طلبولو په مهال (موږ دغه طلب دده څخه کړی دي) ځکه هم هغه د خير او سخا فيضان کونکي دي. او دغه ايساغوجي ده.

## تشريح

**اما بعد:** په دغه کې درې تحقيقه دي.

**تحقيق اول: د بعد مؤجد:** د راجح قول مطابق د دغه اول مؤجد حضرت داود على نبينا و عليه السلام دي.

**دويم تحقيق: د بعد د اعراب بيان:** که چيري د بعد مضاف اليه ذکر وی نو په دغه وخت کې "**بعد**"معرب دی. او که چيري دده مضاف اليه نسياً منسياً محذوف وی نو په دغه وخت کې دی مبني دی.

**دريم تحقيق: د بعد ورسته د فاء بيان:** د "اما"ورسته راتلونکې فاء په جواب کې د" اما" وی.

**ايساغوجی:** دغه په اصل کې يو يوناني لفظ دی. او په اصل کې " ايس آغوجی " دی.او عربي ته د نقل کيدو ورسته بيا " ايساغوجی " ځني جوړ سو .او دغه په اصل کې د هغه گل نوم وو د کوم چې پنځه پاڼې وې. او هره پاڼه يې د هغه بلې څخه جلا جلا وه، او دده په مثل بل گل نسته. او بيا د هغه کلياتو لپاره استعمال سو کوم چې پنځه دي او ددوی غوندی بل کوم بحث

په علم المنطق کي وجود نه لری. او دغه تسمیه د مشبه (پنځه کلیاتي) په نامه سره د مشبه به (کل) مسمي سو.

**فهذه:** دغه اسم اشاره لپاره د واحد مؤنث استعماليږی.

**رسالة:** هر هغه کوشني کتاب چي د يو فن پر څو مسائلو باندی مشتمله وی.

رِسالَة: كتابٌ موجز يُشتمل على قليل من المسائل تكون ذات موضوع واحد :- هل قرأت رسالة ابن سينا في أسباب حدوث الحروف ؟ تم نشر طبعة جديدة من رسالة الغفران لأبي العلاء المعرّيّ .

**المنطق:** په لغت کي خبرو او کلام ته ويل کيږی، او په اصطلاح کي هر هغه علم ته ويل کيږی په کوم سره چي دا معلوميږي چی دغه فکر صحی او دغه فکر غلط دی.

مَنْطِق :1 – مصدر ميميّ من نطَقَ / نطَقَ بـ . 2 – كلام ، لغة ، وقد يُستعمل في غير الإنسان :- رجلٌ حسن المَنْطِق ، – البلاء مُوكَّل بالمَنْطِق ، – { عُلِّمْنَا مَنْطِقَ الطَّيْرِ } . • علم المنطق : ( الفلسفة والتصوُّف ) فرع من الفلسفة يدرس صور التَّفكير وطرق الاستدلال الصحيح التي تعصم مراعاتها الذِّهنَ من الخطأ في الفكر ويُسمَّى علم الميزان ، إذ توزن به الحجج والبراهين :- المنطق الصُّوريّ / الرِّياضيّ ، – منطق أرسطو :(المعجم: اللغة العربية المعاصر)

**استحضار:** په ذهن کي حاضرول، په يادول.

استحضرَ يستحضر ، استحضارًا ، فهو مستحضِر ، والمفعول مستحضَر /// اِسْتَحْضَرَ مَعْلُومَاتِهِ : جعلَها حاضِرةً في ذِهْنِه ، أحضرَها اِسْتَحْضَرَ ذِكْرَيَاتِهِ الْمَاضِيَةَ : تَذَكَّرَهَا.

**مفيض:** اسم فاعل د باب څخه د افعال دی، ورکونکي، توېونکي. جاری کونکي.

أفاضَ / أفاضَ في / أفاضَ من يُفيض ، أفِضْ ، إفاضةً ، فهو مُفيض ، والمفعول مُفاض :- • أفاضَ اللهُ الخيرَ كثّره . • أفاضَ الإناءَ : ملأه حتَّى فاض . • أفاضَ الدَّمعَ : سكبه . • أفاضَ الحديثَ / أفاضَ في الحديث : توسَّع فيه وأطنب :- أفاض القول ليؤكِّد فكرتَه ، – { لَمَسَّكُمْ فِي مَا أَفَضْتُمْ فِيهِ عَذَابٌ عَظِيمٌ }: أكثرتم اللَّغط والافتراء فيه ، – { هُوَ أَعْلَمُ بِمَا تُفِيضُونَ فِيهِ } . • أفاضَ الماءَ على جسده : أفرغه ، صبّه عليه :- { وَنَادَى أَصْحَابُ النَّارِ أَصْحَابَ الْجَنَّةِ أَنْ أَفِيضُوا عَلَيْنَا مِنَ الْمَاءِ }.

**الخير:** نيکي، ښه، **الجود:** سخا.

**ايساغوجي:** ايساغوجي په اصل کي د يوه يوناني حکيم نوم وو. هغه د پنځو کلياتو تخريج او د هغو تدوين او تصنيف وکړي. نو بيا دغه کليات په نامه سره د مستخرِج او د مصنف مسمی سولي. او دغه مسمی کول د مصنَف په نامه سره د مصنِف دی. او دغه پنځه کليات نوع، جنس، فصل، خاصه، عرض عام دي.

"اما" اصل "مهما یکن من شيء بعدالحمد و الصلوة "دی نو "اما" په ځای د اسم "کومه چي مبتدأ ده " او د فعل شرط ولاړ دی، او دی په دواړو معناګانو باندی مشتمله دی، نو د شرط و معنی ته د متضمن توب په وجه دده سره فاء کومه چي د شرط سره لازمه وی لازمه سوه. او دده و معنی ته د ابتدأ د متضمن والي په وجه دده سره د اسم یو ځای والي لازم سو کوم چي د مبتدأ سره لازم وی ددې وجي چي حق د هغه شیانو حتی الامکان ادا سي د کومو په ځای چي اوس "اما" ولاړ دی. او دغه د جزاء د مفهوم د تأکید لپاره استعمالیږی.

فهذه: **سوال:** دلته اسم اشاره استعمالول صحت نه لری، ځکه اسم اشاره و هغه شي ته د اشاره کول په مهال استعمالیږی کوم چي په سترګو سره معلومیږی، او دلته کوم شي محسوس په سترګو سره نسته، ځکه رساله عبارت د ذهني شیانو څخه ده؟

**جواب:** خطبه د کتاب د دوو جالو څخه خالي نه وی. یا به د کتاب لیکولو په مهال تر ټولو مخکي دغه خطبه ترتیب سوې وی، ورسته بیا کتاب نویشته سوی وی، په دې صورت کي هغه شي چي هغه ته په "هذه" سره اشاره سوې وی هغه عبارت د معناګانو او خیالي شیانو څخه وی، څرنګه دغه شیان په ذهن کي ډېر مستحضر او موجود وه لکه په سترګو لیدل سوی شیان، نو دوی یې په سترګو سره د لیدلي سوی شیانو غوندی و ګرزول، نو څرنګه په سترګو لیدل سوي شیانو ته د اشاره لپاره "هذه" استعمالیږی دغه ډول دلته هم ده.

۲: د کتاب تر تکمیل ورسته خطبه د کتاب ولیکل سي نو په دې صورت کي مشار الیه حسي شي دی چي هغه د دوو وقایو د کتاب تر مینځ وجود لری.

**سوال:** مشار الیه د رساله د وقایو تر مینځ موجود شي کېدای نسي، ځکه رساله عبارت د الفاظو او معناګانو څخه وی نه ده نقوشو څخه، او حال دا چي د وقایو تر مینځ موجود شي نقوش دی نه الفاظ او معناګاني، او نقوشو ته بیا رساله نه ویل کیږی؟

**جواب:** نقوشو ته رساله په واسطه د الفاظو ویل سوې ده داډول چي نقوش دلالت پر الفاظو کوي او الفاظ بیا پر معناګانو ، الفاظ او معناګانو ته رساله ویل کیږی نو پر دوی دلالت کونکي ته هم رساله ویل کیږی، نو دغه تسمیه د دال په نامه سره د مدلول ده. او دغه مجاز

مرسل دی او دغه په عربي کلام کي کم نه دی  بلکه زيات استعماليږی ، نو په دې کي کوم حرج نسته.

**رسالة:** دغه په لغت کي مصدر په معني سره "بل کس ته استول" دی، او په اصطلاح کي يوه ټکرا د کاغذ وی چي پر هغه، هغه نقوش سبط وي کوم چي دلالت پر علمي مسائلو کوي.

**سوال:** د کتاب او رساله تر مينځ څه فرق وجود لری؟

**جواب:** فرق دادی چي کتاب پر علمي مسائلو باندی پر طريقه د تفصيل مشتمل وی يعني په کتاب کي د مسائلو تفصيلي بيان وی او په رساله کي بيا اجمالي بيان سوی وی. لهذا رساله هغه کلام دی کوم چي پر علمي قواعدو په طريقه د اجمال مشتمله وی او کتاب هم دغه کلام دي مګر پر علمي قواعدو پر طريقه د تفصيل مشتمله وی.

**في المنطق:** منطق د نطق څخه دی.او د نطق په دو شيانو باندي اطلاق کيږي.

۱): ظاهري خبري چي د هغه په توسط سره اظهار د خپل د زړه کول کيږي.

۲): او په باطني خبرو باندي چي هغه د عقلي شيانو پيژندل دی.

اوس په دغه فن سره نفس په ظاهري او ښکاره خبرو او دغه ډول په باطني خبرو په صحی طريقه کولو سره قادر ګرزی. په دغه وجه سره دغه فن ته منطق ويل کيږي.

۱: مَنْطِق: مصدر ميمي " هر هغه لفظ چي په معني سره د مصدر او په شروع کي ئې ميم وی" په معني سره د خبرو او د کلام کولو دی.

مِنطَق: صيغه د اسم آله ده يعني آله د نطق. ۳: مَنطَق: صيغه د ظرف ده يعني ځای د خبرو، ځای د ترلو. لهذا صيغه د ظرف، آله او مصدر ميمي سي ددې ټولو څخه مراد يو دی چي هغه علم المنطق دی.

مَنْطِق :- 1 - مصدر ميميّ من نطَقَ / نطَقَ بـ . 2 - كلام ، لغة ، وقد يُستعمل في غير الإنسان :- رجلٌ حسن المَنطِق ، - البلاء مُوَكَّل بالمَنطِق ، - { عُلِّمْنا مَنطِقَ الطَّيْرِ } . مُنطِق: ( اسم ): مُنطِق : فاعل من أنطَقَ/// مِنطَق: ( اسم ): الجمع : مَناطِقُ /// المِنطَقُ : اسم آلة من نطَقَ / نطَقَ بـ : ما يُشدُّ به الوسَط. منطق : موضع « النطاق »، وهو قطعة من قماش أو جلد يشد بها الوسط ، زنار .

**سوال:** مصنف رحمه الله ولي د تصنيف لپاره فن د علم المنطق منتخبه کړي نه کوم بل فن؟

**جواب:** ځکه علم المنطق ستر شان لرونکي دی، هم دی سبب د ظاهری او باطني نطق دی. څرنګه دده شان اوچت وو په دې وجه ده تصنيف دپاره هم دغه فن منختب کړي.

**مایجب:** دلته د وجوب څخه وجوب شرعي مراد نه دی، ځکه د وجوب شرعي په ترک سره سړی ګناه ګاره او مستحق د عذاب ګرزی. مګر دغه اصطلاحات په نه زده کولو سره سړی د عذاب مستحقه نه ګرزی، بلکه وجوب عرفي مراد دی یعني ښه کار دی، او دغه ډول د وجوب څخه وجوب عقلي هم مراد نه دی، ځکه د واجب عقلي څخه تخلف او مخالفت ممکن نه وی مګر دلته تخلف راتلای سي داډول چي دا ممکن ده چي په یو علم کي د علومو څخه یو طالب شروع ښیله د "ما یجب استحضاره" وکړی، لهذا که چیری وجوب عقلي وای نو بیا به شروع ښیله "ما یجب استحضاره" ممکن نه وای.

**واجب شرعي:** هر هغه شي چي د هغه طلب د شارع د طرف څخه په طریقه د جزم په ظني دلیل سره ثابت سوی وی.

**الواجب هو** ما ثبت طلبه من الشارع طلبا جازما بدلیل ظني.

في شيء من العلوم: **سوال:** "العلوم" عام دی و علم المنطق ته هم شامله دی، نو معني د عبارت دا ګرزی ما په دغه رساله کي هغه شیان بیان کړی دی چي د کوم حاضرونه په ذهن کي د هغه چا لپاره ضروری ده چي هغه شروع په یو علم کي د علومو کوی. او د علومو څخه علم المنطق هم دی نو معني داسوه چي په منطق کي د شروع کوني لپاره هم استحضار ددغه شیانو ضروری دي. او حال دا چي په منطق کي دغه شیان بیانیږی نه په بل علم کي نو اوس که چیری په علم المنطق کي د شروع کولو تر مخه ددوی استحضار ضروری سي نو مخکي والي به د شي (ما یجب استحضارها) پر خپل ځان (علم المنطق) راسي او مخکي والي باطل دی؟

**جواب:** د " العلوم" څخه مراد ماسیوا د علم المنطق دي. یعني د علم المنطق څخه سیوا په کوم بل علم کي د شروع کونکي طالب دپاره ددوی استحضار غوره او اولي دی.

**ایساغوجي:** دغه نوم د یو حکیم د حکماؤ څخه د یونان دی. او دی د کلیاتو خمسو په علم لرلو سره شهرت ته رسیدلي وو. نو دغه کتاب په نامه سرد ددغه ماهر کس مسمي کړل سو.

**سوال:** دغه رساله په ایساغوجي سره مسمي کول دغه د تسمیه کوم قسم دی؟

**جواب:** دغه تسمیه د شي په نامه سره د جزء ده، لهذا په رساله کي کلیات خمسه او د هغوی ځخه سېوا نور شیان (لکه قول شارح، قضایا، قیاس، عکس او نقیض او دغه ډول نور) بیانیږی.
نو تسمیه د ټولې رسالې په نامه سره د بعض وسوه.

﴿**فائده**﴾: دا خبره هم راغلېده چي ایساغوجي یو یوناني لفظ دی او مرکب د درو الفاظو ځخه دی. ۱: ایسا. ۲: اغو. ۳: جي. د اول معني ده ته، او د دوهم معني ده زه، او د درېیم معني ده هلته. نو معني داسوه چي زه او ته هلته بحث کوو. ورسته تر دې د "اغو" ځخه د اختصار په خاطر الف حذف سو. بیا ورسته منطقینو دغه لفظ د ایساغوجي نقل کړي او نوم یې د کلیاتو خمسو لپاره وګرزوي، بیا مصنف د خپل کتاب نوم وګرزوي.

**سوال:** ضمیر د مؤنث په "منها" کي و چا ته راجع دی؟

**جواب:** دغه و "ما یجب استحضاره" ته راجع دی، او "ما یجب استحضاره" عبارت د فوائد ځخه دی، او فوائد مؤنث دی، په دې وجه ضمیر د مؤنث ورته راجع سو. لهذا بعض د دغه فوائدو ځخه ایساغوجي ده یعني پنځه کلیاتي، او هغه پنځه کلیاتي دادی. ۱: جنس. ۲: نوع. ۳: فصل. ۴: خاصه. ۵: عرض عام. او نوره خلاصه د حاشیه پاسه تېره سوېده.

## عبارت

اللَّفْظُ الدَّالُّ يَدُلُّ عَلَى تَمَامِ مَا وُضِعَ لَهُ. بِا لْمُطابَقَةِ. وَهُوَ عَلَى جُزْئِهِ بِالتَّضَمُّنِ إِنْ كَانَ لَهُ جُزْءٌ. وَعَلَى مَا يُلاَزِمُهُ فِي الذِّهْنِ بِالاِلْتِزَامِ .كَالإِنْسَانِ، فَإِنَّهُ يَدُلُّ عَلَى الحَيَوَانِ النَّاطِقِ بِالمُطَابَقَةِ، وَعَلَى أَحَدِهِمَا بِالتَّضَمُّنِ، وَ عَلَى قَابِلِ العِلْمِ، وَ صِنَاعَةِ الْكِتَابَةِ بِالاِلْتِزَامِ .

## ترجمه

(بيا په دلالت لفظي وضعي کي که چيرى) دلالت د لفظ پر ټوله موضوع له معني باندى وى دغه دلالت مطابقي دى، او د موضوع له پر يوه حصه باندى وى دغه دلالت تضمني دى. په دې شرط سره چي موضوع له معني لره اجزاء وي. او پر هغه شي باندى دلالت کوم چي د موضوع له سره په ذهن کي لازم وى دغه دلالت التزامي دى، د مثال په توګه انسان، ددغه دلالت پر حيوان ناطق باندى مطابقي او پر يوه د دوى (د حيوان او ناطق څخه) تضمني او پر قابليت د علم اوفن د کتابت باندى التزامي دى.

## تشريح

**لفظ:** په لغت کي غورځولو ته ويل کيږى، او په اصطلاح کي هر هغه شي ته ويل کيږى چي په هغه سره انسان تلفظ کوى.

**يدل:** دلالت د نصر ينصر باب څخه دى، په لغت کي لار ښوولو ته ويل کيږى، او په اصطلاح کي پر يو شي باندى د علم راتلو څخه پر بل شي باندى راتللو ته ويل کيږى، اول شي ته دال او دوم شي ته مدلول ويل کيږى. دال که چيرى لفظ وى نو دغه ته دلالت لفظي ويل کيږى. او که چيرى لفظ نه وى نو دغه ته دلالت غير لفظي ويل کيږى. لکه د دود (لوګى) په ليدلو سره علم پر اور باندى راتلل دغه دلالت غير لفظي دى.

**مطابقت:** موافقت، يو شي د بل سره موافق ګرزېدل.

**تمام ما وضع له:** ټوله هغه معني د کومي لپاره چي واضع دغه لفظ وضعه کړى وى.

**تضمن:** په بغل کي نيول.

دلالت لفظي وضعي پر درې قسمه دي.

۱: **مطابقي**: په لغت کي و موافقت ته ویل کیږي. په عربي ژبه کي ویل کیږي "طابقَ النعلُ بالنعلِ" یعني یو چوټه د بلي چوټي سره موافقه سوه، دا به هغه وخت ویل کېدل څه وخت چي به یوه د هغه بلي سره موافقه و ګرزېدل. دلالت مطابقي ته په دې وجه مطابقي ویل کیږي چي د غه مطابقت د لفظ او د معني تر مینځ سبب لپاره ددې خبرې دی چي لفظ په ټوله موضوع له معني باندې دلالت وکړي، لهذا د غه تسمیه د مسبب په نامه سره د سبب ده.

**تضمن** په لغت کي په بغل کي نیولو ته ویل کیږي. اوس منطیقین د غه دلالت په دې وجه سره په تضمني مسمي کړي چي تضمن په لغت کي په بغل کي نیولو ته ویل کیږي د غه ډول معني تضمني هم په بغل کي د معني مطابقي وي. نو د غه متضمن والي سبب لپاره دد غه دلالت دی. لهذا د غه تسمیه د مسبب په نامه سره د سبب دی.

په دې خبره سره پوه سه چي دلالت پر دوه قسمه دي. ۱: لفظي. ۲: غیر لفظي. اوس دلالت په دغه دوه قسمه کي په دې وجه سره حصر سوی دی چي دال به یا لفظ وي نو د غه دلالت لفظي دی، او که چیرې دال لفظ نه وي، نو د غه بیا دلالت غیر لفظي دی. بیا دلالت لفظي پر درې قسمه دي.

۱: **دلالت لفظي وضعي**: هر هغه دلالت لفظي چي په وضع د واضع موقوفه وي هغه ته دلالت وضعي ویل کیږي.

**مثال**: دلالت د زید پر حیوان ناطق مع هذا التشخص باندې. دلته دال (دلالت کونکي) لفظ د زید دی، او د غه حیوان ناطق مع هذا التشخص دپاره وضع سوی دی. او د غه حیوان ناطق مکمله معني د زید ده، نو د زید دلالت پر د غه خپله معني دلالت لفظي وضعي دی.

۲: **دلالت لفظي عقلي**: هر هغه دلالت چي محض په اعتبار د عقل وي د غه ته عقلي ویل کیږ ي.

**مثال**: یو کس تر دېواله و هغه خوا ته لفظ د دیز واربدی، عقلا ددې څخه دا معلومیږي چي هلته کوم کس وجود لري. ځکه لفظ لافظ غواړي. لهذا دلالت د لفظ د دیز پر وجود د ویو

نکي کس په اعتبار د وضع نه دی (ځکه دیز لفظ مهمل دی کومه معني نه لری)، بلکه دغه دلالت یې په اعتبار د عقل دی. نو دلالت د دیز پر وجود د ویونکي دغه دلالت لفظي عقلي دی.

۳: **دلالت لفظي طبعي:** هر هغه دلالت لفظي چي په سبب د طبعیت وي دغه ته دلالت لفظي طبعي ویل کیږي.

﴿فائده﴾: طبعیت هرهغه شي ته ویل کیږی چي پر کوم د انسان تخلیق سوي وی. او په اصطلاح کي و هغه شي ته ویل کیږی کوم چي مبدأ د هغه آثارو وي کوم چي خاص تر دغه شي پوری وي.او دغه ته صورت نوعي ویل کیږي.او دلته مراد هغه څه دی چي هغه مبدأ لپاره د هغه آثارو دپاره وي کوم چي خاص تر نفس د یو کس وی.او مطلب دادی: د لفظ کو نکي طبیعت تقاضی د تلفظ په دغه لفظ سره کوي څه وخت چي یو معني دغه طبعیت ته ور عارضه سي.

**مثال:** یو کس اُح وکړی، نو دلالت د اح اح پر درد د سینې دغه په اعتبار د وضع د واضع نه دی، ځکه واضع لفظ د اح اح ددغه لپاره وضعه کړی نه دی. او نه دغه دلالت په اعتبار د عقل دی بلکه په اعتبار د طبیعت دی، یعني څه وخت چي عارض و یو کس ته وریښس سي نو بیا طبعیت ددغه تقاضي کوی چي اح اح ځني صادره سي.

**سوال:** دلالت غیر لفظي ولي دلالت مطابقي، تضمني او التزامي کېدای نسي؟

**جواب:** ځکه په دې درو سرو اقسامو کي دال لفظ وی، څرنګه په دلالت غیر لفظي کي دال لفظ نه وی په دې وجه دغه و هغه اقسامو ته وېشل کېدای نسي په کومو کي چي دال لفظ وی.

**سوال:** دلالت عقلي او طبعي ولي دغه درې قسمه نه لری، ددې څه وجه ده؟

**جواب:** ددې وجه داده چي په منطقو کي هغه دلالت مراد دی کوم چي ګلي وی یعني هر وخت وی او هغه دلالت معتبر نه دی چي هغه کله وی او کله بیا نه وی، څرنګه دلالت وضعي ګلي دی، په افرادو ، طبیعتونو او عقلونو سره نه مختلفه کیږی. د مثال په توګه ضرب چي هر رنګه کس وو ایي نو ددې معني ده "وې واهي". په خلاف د دلالت عقلي او طبعي دغه دواړه ګلي نه

وي، ځکه طبيعتونه لکه څرنګه مختلف دي دغه رنګه عقلونه هم مختلف دي، د يوه طبعيت يو ډول او د بل دا بيا بل ډول تقاضي وي دغه ډول عقلونه دی، څرنګه په منطق کي دلالت ګلي معتبر دی او دغه پرته د لفظي وضعي څوک کېدای نسي په دغه وجه دغه و درو قسمونو ته وو پشل سو.

**بالتضمن:** يعني په ضمن کي د معني موضوع له. يعني دلالت پر هغه معني مراد وی کوم چي په ضمن کي د معني مطابقي وی. او دغه متضمنوالي سبب دپاره د دلالت د لفظ پر جزء د معني موضوع له دی، نو دغه تسميه د مسبب په اسم سره د سبب دی، لکه دغه خبره چي مخکي تېره سوه.

**بالإلتزام:** لزوم پر دوه قسمه دي.

١): **لزوم بين بمعني الإخص:** تصور د خارجي شي لازم د تصور سره د موضوع له وی.

٢): **لزوم بين بمعني الإعم** : تصور د ملزوم کفايت په جزم کې په لزوم سره ترمينځ د لازم او ملزوم نه کوي بلکه تصور د ملزوم او تصور د لازم مجموع دواړه کفايت په جزم کې په لزوم سره کوي .

**سوال:** په دلالت التزامي کي کوم لزوم معتبر دی؟

**جواب:** په دلالت التزامي کي لزوم بين بمعني الاخص معتبر دی.

**سوال:** په متن کې مثال او ممثل سره برابر نه دي. ځکه ممثل دلالت التزامي دی. او په ده کې لزوم بين بمعني الاخص معتبر دي. او مثال د لزوم بين بمعني الاعم دي. ځکه په تصور سره د حيوان ناطق حصول د قابل العلم په ذهن کې نه راځي. او دغه ډول عقل په وخت کې د تصور دحيوان ناطق په لزوم سره په مابين کې د حيوان ناطق او د قابل العلم جزم نه کوی. بلکه عقل جزم وروسته تر تصور دحيوان ناطق او د قابل العلم کوي په لزوم سره په مابين کې د قابل العلم او د حيوان ناطق؟

**جواب:** متن بناء پر مذهب د امام اود متأخرينو دی. او په نيز ددوی معتبر په دلالت التزامي کې لزوم بين بمعني الاعم دی. او د قابل العلم، صنعة الکتابة او د انسان په ترمينځ لزوم بين الاعم موجود دی. ځکه که يو کس د انسان تصور په دی سره و کړی چي دی يو داسي حيوان

دي چي دی د کلیاتو ادراک کوی.او تصور د مفهوم د قابل العلم او د صنعة الکتابة و کړي نو دغه کس یقین په لزوم سره په ما بین کي د انسان او د قابل العلم او صنعة الکتابة کوی. لهذا او س مثال او ممثل سره موافق دی.

﴿فائده﴾: په دلالت التزامي کې لزوم ذهني شرط سوی دی نه خارجي، ځکه که چېرې لزوم خارجي شرط سي نو بیا به دلالت التزامي بېله لزوم خارجي ثابت نسي، ځکه لزوم خارجي شرط دی، او په انتقاء سره د شرط انتقاء د مشروط راځي.او حال دا چي دلالت التزامي کله بېله لزوم خارجي موجودېږي لکه عمي. او س د عمي سره بصر لازم دی، ځکه د عمي مفهوم خو عدم البصر ده، نو عمی د مفهوم له تصور سره د بصر تصور لازم ده. لکن دغه بصر په خارج کې تضاد د عمي سره لري. لهذا لزوم خارجي لپاره د دلالت التزامي شرط نه دی.

## عبارت

ثُمَّ اللَّفظُ: إمَّا مُفرَدٌ :وَهُوَ الَّذِي لاَ يُرَادُ بِالجُزْءِ مِنهُ دَلاَلَةٌ عَلَى جُزْءِ مَعْنَاه. كَالإِنْسَانِ . وَإِمَّا مُؤَلَّفٌ :وَهُوَ الَّذِي لاَ يَكُونُ كَذَلِكَ كَرَامِي الْحِجَارَةِ.

## ترجمه

بيا به لفظ يا مفرد وی، مفرد هغه دی چي دلالت د جزء د لفظ پر جزء د معني اراد سوی نه وی. لکه انسان. او يا به مرکب وی، مرکب هغه لفظ دی چي دغه ډول نه وی. لکه ستا دا قول د ډبری ويشتونکي.

## تشريح

**مفرد:** هر هغه لفظ چي د ده د جزء دلالت پر جزء د معني قصد سوی نه وی، يعني مقصود نه وی.

**مرکب:** د مرکب تعريف پر څلورو قيودو مشتمله دي.

۱): لفظ لره ئې جزء وی. ۲):معني لره ئې جزء وی ۳): جزء د لفظ به په جزء د معني دلالت کوی. ۴): دلالت د جزء د لفظ به په جزء د معني مقصود وی.

**رامي الحجارة:** ډبره ويشتونکي کس، اوس د لته حجارة پر ذات د ډبری دلالت کوی، او رامي د غورځونکي انسان پر کيفيت باندی دلالت کوی، او دغه دلالت مقصود هم دی، نو جزء د لفظ پر جزء د معني دلالت کوی.

## خلاصه حواشي ايوبي

**سوال:** تعريف د مفرد مانع د اغيارو څخه نه سو. ځکه مهمل الفاظ په کي داخل سوه د مثال په توګه لکه جسق، ځکه جزء د جسق په جزء د معني دلالت نه کوي. ځکه ده لره معني سته. او دغه ډول هغه الفاظ چي دلالت په معني باندي په اعتبار د عقل او د طبعيت کوي. لکه دلالت د أح أح په درد د سيني. او دلالت د ديز پر وجود د لافظ. اوس ددغو الفاظو جزء پر جزء د معني دلالت نه کوي. ځکه په دوی کي وضع نسته. لهذا دغه مفرد نه دی. مګر په تعريف کي داخل سوه؟

**جواب:** دلته يو قيد پاته سوي دی( ځکه دغه قيد مشهور دی. د مشهوروالي د وجې پاته سوي دی) هغه قيد دادي: لفظي موضوع تقسيم و مفرد او مرکب ته سوي دی. او دغه ټول اوس ووتل. ځکه ددغو ثخه يو لا هم لفظ موضوع نه دی.

**سوال:** که چيري دغه الفاظ مهمل او هغه الفاظ چي په معناګانو باندي په اعتبار د عقل يا د طبعيت دلالت کوي په مفرد کي داخل سي نو ددوی ددخول ثخه هيڅ ضرر نه رسيږي. لهذا ددوي د ايستولو کوم ضرورت نسته؟

**جواب:** ستا خبره صحی ده. مګر خبره داده چي دغه خبره د جمهورو ثخه خلاف ده. دوی ويلي دي چي لفظ تر هغه وخت پوري په مفرد او مرکب موصوف کيدلای نه سي تر څو چي دی د يو معني لپاره وضع سوي نه وی. ددغه ثخه دا ثابت سوه چي د لفظ مفرد او مرکب کېدل ورسته تر وضعي وی. او په دغه الفاظو کي وضع نسته.

**مفرد:** هغه لفظ چي جزء دده دلالت پر جزء د معني نه کوی، او دغه مفرد ثلور قسمونه لری.

۱: لفظ جزء لری مګر معني يې جزء نه لری.

**مثال:** لکه نقطه. دغه يو لفظ دی. دلره اجزاء سته خودده معني مصداقي لره جزء نسته. ځکه دده مصداق آخر د خط دی. او آخر لره د خط جزء نه وی.

۲: لفظ لر جزء نه وی:

**مثال:** "ا "(يعني همزه د استفهام لپاره). اوس همزه چي داډول نويشته کيږی "أ" دغه کوم جزء نه لری، دغه ډول د قسم لپاره استعمال سوی واو. دا هم کوم جزء نه لری.

۳: لفظ لره هم جزء وی او معني لره هم جزء وی مګر جزء د لفظ دلالت پر جزء د معني نه کوی لکه انسان. اوس د انسان معني موضوع له "حيوان ناطق" ده. لفظ لره هم او معني لره هم جزء سته. مګر جزء د لفظ په جزء د معني دلالت نه کوی داډول چي الف په يوه او نون پر بل او سين پر بل دلالت وکړی.

۴: لفظ لره جزء او معني لره هم جزء وی، او جزء د لفظ دلالت پر جزء د معني هم کوی خو دغه دلالت مقصود نه وی. لکه **عبد الله**. اوس عبد الله لره جزء سته او معني لره ئې هم سته خو

دغه معني مقصوده نه ده.ددی بیان دادی   چي عبدالله لره دوې معناګاني شته.
۱: ترکیبي: اولوهیت،عبود یت.۲: علمي:حیوان ناطق مع هذا التشخص.او دا ښکاره خبره ده
چي معني ترکیبي د عبدالله جزء د معني علمي څخه د عبدالله نه ده.
۵: لفظ لره جزء او معني لره جزء وی او جزء د لفظ پر جزء د معني مقصودی دلالت کوی خو
دغه دلالت مقصود نه وی. لکه حیوان ناطق چي د یو کس لپاره نوم وګرزی.ددې بیان دادی
چي حیوان ناطق لره دوې معناګاني دي. ۱: ترکیبي:جسم نامي حساس متحرک بالارادة مدرک
الکلیات مع هذا التشخص او حیوان په اعتبار سره د وضع ترکیبي دلالت په جسم نامي حساس
متحرک بالارادة باندې کوي او جسم نامي الخ جزء د معني ترکیبي دي او معني ترکیبي د
حیوان ناطق جزء د معني علمي څخه د حیوان ناطق ده. ځکه معني علمي د حیوان ناطق دغه
معني ترکیبي د حیوان ناطق سره د مع هذا التشخص ده .لهذا حیوان دلالت په جزء باندي د
معني ترکیبي کوي.او معني ترکیبي بیا جزء د معني علمي ده او جزء [حیوان] د جزء [معني ترکیبي
] د شي [معني علمي] جزء د شي دی نو حیوان جزء د معني علمي څخه دی. مګر دغه دلالت کول
مقصود نه وی.ځکه په وخت کي د نامه ګرزولو هغه کس مراد وی نه ددغه لفظ معني .
**سوال:** "الانسان" مفرد بلل صحت نه لری، ځکه "الف و لام" په "الانسان" کي پر تعریف دلالت
کوی، او "انسان" پر "حیوان ناطق" باندی دلالت کوی، نو جزء د لفظ پر جزء د معني دلالت وکړی
او هم دغه مقصود دی؟
**جواب:** "الانسان" کي "انسان" مثال دی، او الف لام پر تعین دلالت کوی. نه پر کومه معني باندی
**دلإلت:** په لغت کي فهمولو ته ویل کیږی او په اصطلاح کي پر یوه شي باندی په علم راتلو
سره پر بل شي باندی علم راتللو ته ویل کیږی. اول ته دال او دوم ته مدلول ویل کیږی. دلالت
پر درې قسمه دي. وضعي، عقلي او طبعي. او د هر یوه تعریف مخکي تېر سو.
**سوال:** موږ دغه خبره نه منو چي د انسان جزء په جزء د معني دلالت نه کوی بلکه کوي یې
داډول چي انسان د الف ، نون، او سین څخه جوړ سوي دی.او اهل حساب فرمایي چي الف
لپاره د یوه وضع دی.او نون د پنځوس لپاره وغیره. نو اوس جزء د انسان په جزء د معني دلالت
کوي لهذا انسان یو لفظ مرکب دی نه مفرد ؟

جواب:دلته مراد د اراده څخه اراده لغویه ده.او دغه اراده چي تا ذکر کړه دغه د اهل لغت په نیز هیڅ اعتبار نه لري بلکه دغه یو نوې وضع ده.

وَالْمُفْرَدُ :إِمَّا كُلِّيٌّ وَهُوَ الَّذِي لاَ يَمْنَعُ نَفْسُ تَصَوُّرِ مَفْهُومِهِ مِنْ وَقُوعِ الشَّرِكَةِ فِيهِ .وَإِمَّا جُزْئِيٌّ وَهُوَ الَّذِي يَمْنَعُ نَفْسُ تَصَوُّرِ مَفْهُومِهِ مِنْ ذٰلِكَ .كَزَيْدٍ عَلَمًا .

## ترجمه

مفرد به یا کلي وی، او کلي " هغه دی چي نفس تصور د مفهوم ددغه لفظ د ډیرو په ده کي د شریکوالي څخه مانع نه وي. او جزئي " هغه دی چي نفس تصور د مفهوم ددغه لفظ د ډیرو په ده کي د شریکوالي څخه مانع وي. لکه زید چي علم د یو چا لپاره وی.

## تشریح

**کلي:** هغه شي دی چي نفسي تصور د دغه مفهوم مانع ددې څخه نه وی چي په ده کي ډېر شریک و ګرزی.

**بل عنوان:** عقل دا منعه نه بولي چي دغه مفهوم پر ډیر، باندې صادقه و ګرزی.

**جزئي:** هغه شي چي نفسي تصور د دغه مفهوم مانع ددې څخه وی چي په ده کي ډیر شریک و ګرزی.

**بل عنوان:** عقل ددې څخه منعه کوی چي دغه مفهوم دی پر ډیرو صادقه سي.

**مفهوم:** هر هغه شي چي په عقل کي حاصل وی.

**سوال:** ددغه قید "نفس" راوړل څه فائده لری؟

**جواب:** فائده یې داده چي په دغه قید سره تعریف د کلي جامع خپلو افرادو ته و ګرزدی، ځکه که لفظ د نفس ویل سوی نه وای، نو بیا به معني داګرزېدلې وای: کلي هغه دی چي مفهوم دده مطلقاً د کثیرینو تر مینځ د شراکت څخه منعه نه کوی، عام تر دې دغه نه منعه په اعتبار د ذهن او که د خارج وی، ځکه مطلق (مفهوم ) پر خپل اطلاق پاته وی. نو په دې صورت کي

كليات فرضيه ووتل ، ځکه مفهوم د دوی منعه په اعتبار د خارج کوی، نو دوی په جزئیاتو کي داخل سول، او حال دا چي دوی د کلي د اقسامو څخه دی، او څه وخت چي قید د نفس اضافه سو نو معني دا سوه: کلي هغه دی چي مفهوم دده منعه کونکي نه وی، او ددغه مفهوم نه منعه مطلق نه وی بلکه په اعتبار د نفسِ تصور وی، نو اوس کلیات فرضیه و نه وتل، ځکه ددوی مفهوم په اعتبار د نفسِ تصور مانع نه دي.

**سوال:** دغه "تصور" قید څه فائده لری؟

**جواب:** ددې فائده داده که چیري د "تصور" لفظ په تعریف کي راوړل سوي نه وای. او داډول ویل سوی وای "ما لا یمنع مفهومه عن وقوع الشرکة فیه" نو بیا دا فهمېدله چي د ډیرو د شریکوالي څخه منع نه کولی او یا منع یې کول په اعتبار د حقیقت او د نفس الامر. نو په دغه وخت کي تعریف د کلي جامع او د جزئي دا مانع نه ګرزیدی داډول چي مفهوم د واجب الوجود او فرضي کلیات د کلي څخه خارجېدل. ځکه په حقیقت کي واجب الوجود د شریکوالي څخه مانع دی. ځکه په خارج او نفس الامر کي مانع د شریکوالي څخه دی. ځکه ده لره یو فرد سته نه. او دغه ډول فرضي کلیات دی. ځکه دوی په حقیقت کي وجود نه لري. نو بیا به ددوی نه ما نع والي دشریکوالي څخه څرنګه راسي. لهذا مصنف ددغه قید اضافه وکړه. نو ددغه څخه دا معلومه سوه چي منع کول او نه کول په اعتبار د نفس الامر نه دی. بلکه په اعتبار دعقل دی. اوس که چیري عقل قطع نظر د خارج او نفس الامر څخه په یو شي کي د ډیرو شریک والي منع بولي نو هغه جزئي دی ورنه بیا کلي دی. اوس کلیات فرضیه داخل سوه. ځکه منع کول په اعتبار ددوی د مفاهمو نه دي. بلکه په دې وجه سره دی چي ددوی مقابل په خارج کي و ټولو شیانو ته شامله دي. لهذا شامل والي مانع دی. او دغه معتبر په کلیت کي نه دی.

**خلاصه** ددواړو تعریفو داسوه: هغه شي چي په عقل کي حاصل سي که چیري فرضول ددغه شي د صادق والي په ډیر و باندي منع وی نو دغه جزئي دی او که داډول نه وو نو دغه به کلي دی.

**سوال:** تقسیم د مصنف صحی نه دی. ځکه کلي او جزئي د اقسامو څخه د مفهوم دي نه د اقسامو څخه د لفظ. ځکه د ډیرو په ما بین کي د شریکوالي څخه منع کونکي مفهوم او معني

وی نه لفظ.د مثال په توګه زید. په ده کي ډير نه سي شريکېدلای.اوس مانع ددغه څخه لفظ د زيد نه بلکه معني د **زيد**"حيوان ناطق مع هذا التشخص"**مانع ده. لهذا کلي او جزئي د لفظ** قسمونه بلل صحی نه دي؟

**جواب:** ستا خبره صحی ده مګر دغه بلل ئې مجازا دی داډول چي دوی اقسام د معني دي.او معني مدلول د لفظ ده.لهذا دلته اقسام د مدلول د دال لپاره مجازا ګرزېدلي دی.لکه څهډول افراد او ترکيب د لفظ صفات دي مګر مجازا دغه صفات لپاره د معني ګرزيدلې دی. او دغه په ما بين کي د منطيقينو عامه خبره ده.

**سوال:** کلي او جزئي ئې ولي په دغه نومانو سره مسمی کړه؟

**جواب:** کلي اکثره د جزئي جزء وي.لکه حيوان چي جزء د خپل د هرهرفرد دی. او دغهډول لکه انسان چي جزء د خپل د هر هر فرد دی. لهذا جزئي کل او کلي جزء سو. او د يو شي کلي والي بالنسبت و خپلو اجزاؤ ته وی" يعني يو شي هلته کلي کيږي چي ده لره افراد وي. لهذا دده کلي والي په اعتبار دده د افرادو دی. د مثال په توګه د علم کلي والي . اوس دغه بالنسبت و زيد او عمر ته نه دی. بلکه بالنسبت د زيد او د عمر د علومو دی. لهذا دغه کلي و کل " جزئي" ته منسوب وي. او و کل ته منسوب ته کلي ويل کيږي.او د يو شي جزئي والي بالنسبت و کلي ته وي. يعني هغه شي ته جزئي ويل کيږي چي هغه د يو کلي جزء وی. او و جزء ته منسوب شي جزئي وی نو دغه شي جزئی دی.

## عبارت

وَالْكُلِّيُّ :إِمَّا ذَاتِيٌّ وَهُوَ الَّذِي يَدْخُلُ فِيْ حَقِيقَةِ جُزْئِيَّاتِهِ .كَالحَيَوَانِ بِالنِّسْبَةِ إِلَى الْإِنْسَانِ وَالْفَرَسِ.

## ترجمه

كلي به يا ذاتي وى، او ذاتي هغه دى چي په حقيقت كي د خپلو جزئياتو داخل وي لكه حيوان بالنسبة و انسان او آس ته.

## تشريح

**ذاتي:** ددې دوه تعريفه سوى دي.

۱: ذاتي داخل په حقيقت كي د افرادو وى، او عرضي خارج د حقيقت څخه د افرادو وى.

۲: ذاتي: هر هغه چي په حقيقت كي د خپلو جزئياتو داخل وى.

**عرضي:** هغه دى چي خارج د حقيقت څخه د خپلو افرادو وى، ددې مطابق نوع ذاتي نسوه، ځكه داخله نه ده او عرضي نسوه ځكه خارج د ذات څخه نه ده، بلكه عيني ذات ده. او نوع ذاتي او عرضي څخه يوه نه كېدل دغه د اصطلاح څخه مخالفت دى.

### خلاصه حواشي ايوبي

**سوال:** مصنف رحمه الله چي كوم تعريف د ذاتي كړى دى دغه صحت نه لرى، ځكه د دغه تعريف مطابق د تعريف د ذاتي جامع خپلو افرادو ته نه دى، نوع د تعريف څخه د ذاتي ووتل. او په عرضي كي داخل سو، ځكه مصنف تعريف د ذاتي داډول كړى دي: كلي ذاتي هر هغه كلي دى كوم چي په حقيقت كي د خپلو افرادو داخل وى، اوس په نوع باندى دغه تعريف نه صادقيږى، ځكه نوع هغه ذاتي دى كوم چي تمام حقيقت د خپلو افرادو وي، او په حقيقت كي د خپلو افرادو داخل نه وى، لهذا نوع ذاتي ده مګر تعريف د ذاتي پر صادقه نسو، نو نوع به عرضي و ګرزى، ځكه مصنف و فرمايل: عرضي په خلاف د ذاتي وى، نو هر هغه كلي به عرضي وى كوم چي په حقيقت كي د خپلو افرادو داخل نه وى، بيا عام ترديځ تمام حقيقت د افرادو وى، او يا خارج د حقيقت څخه د افرادو وى؟

**اول جواب:** دغه قول څخه د مصنف"ذاتي هغه دی چي داخل په ذات کي د خپلو افرادو، وی" په دې معنی سره دی" چي خارج د ذات څخه د خپلو افرادو نه وی بيا عام تر دې په ماهيت کي داخل وی" لکه جنس او فصل" او که عينِ ماهيت " لکه نوع " وی. او دغه د شي مسمی کول په نامه سره د ملزوم دی. ځکه عدم خروج د دخول د لوازمو څخه دی.

**تبصره:** دغه جواب کمزوری دی، ځکه ذکر ملزوم او مراد لازم دغه مجاز دی، او مجاز په تعريفاتو کي ممنوع دی، نو که چيری د ملزوم څخه لازم مراد سي، په تعريف کي د ذاتي مجاز اختيار کړل سو، او مجاز په تعريفاتو کي ممنوع وی، نو د ملزوم څخه لازم مرادول ممنوع دی.

**دوم جواب:** مراد د هغه حقيقت څخه "چي په تعريف کي د ذاتي واقع سوي دی"ماهيت شخصي د افرادو دی. او س تعريف د ذاتي دا و ګرزېدی : ذاتي هغه کلي دی کوم چي په ماهيت شخصي کي د افرادو داخل وی. په دې اعتبار سره جنس، نوع او فصل ټوله په حقيقت شخصي کي د افرادو داخل دی.

**مثال:** انسان نوع ده. او افراد د دغه نوع زيد عمر او بکر دی، او ماهيت شخصي د دغه افرادو حيوان ناطق مع هذا التشخص دی. نو حيوان ناطق نوعَ ده، او دغه په ماهيت شخصي کي د زيد او عمر داخل دی، ځکه زيد حيوان ناطق مع هذا التشخص دی، نو حيوان ناطق نوع او بله حصه د دغه جزئي "مع هذا التشخص" دی. او په دغه ماهيت شخصي کي حيوان هم سته چي جنس دی او ناطق هم سته چي فصل دی، او حيوان ناطق مجموع هم په کي سته چي نوعَ ده. لهذا نوع ته ذاتي ويل په اعتبار د ماهيت نوعي نه دی بلکه په اعتبار د ماهيت شخصي دی، ځکه نوع جزء د ماهيت شخصي دی.

**سوال:** په دغه صورت کي مراد د ماهيت څخه په دې عبارت "النوع تمام ماهية جزئياته" کي څه دي؟

**جواب:** ماهيت کلي مراد دی نه ماهيت شخصي، ځکه نوع بعينه ماهيت کلي د آفرادو ده، نه ماهيت شخصي د افرادو، د مثال په توګه زيد، د ده ماهيت حيوان ناطق دی. او د "مع هذا

التشخص" قيد په تعريف کي د زيد او عمر او پرته ددوی د نورو افرادو راځي (حيوان ناطق مع هذا التشخص) دغه د ماهيت څخه خارج دي. لهذا نوع بعينه ماهيت کلي د خپلو افرادو دی.

**﴿فائده﴾**: دلته د جزئياتو عام اخيستل، حقيقي او اضافي ته شامله کرزول دغه لره د پاسني اعتراض په دفعه کولو کي کوم دخل نه معلوميږی، بلکه ددې ضرورت ددې سوال په جواب کي وړاندی کيږی. خلاصه د سوال داده : په عبارت کي د ذاتي دا مثال "کالحيوان بالنسبة الي الانسان" راوړل صحت نه لری، ځکه انسان جزئي نه دی که وای نو بيا به داډول وينا صحت موندلي وای چي حيوان بالنسبت و جزئي ته ذاتي دی، او حال دا چي انسان جزئي نه بلکه پخپله يو کلي دی. ددغه سوال د دفعي لپاره شارحينو فرمايلي دي چي دلته جزئي عام حقيقي او اضافي داوړو ته شامله دي. لهذا انسان که څه هم جزئي حقيقي نه دی مګر اضافي هرومرو دی ځکه دی اخص تر حيوان دی. والله اعلم بالصواب

**جزئي حقيقي**: هغه شي چي نفسي تصور دده د مفهوم مانع ددې څخه وی چي په ده کي ډير شريک وګرزی.

**جزئي اضافي**: هر هغه شيْ چي اخص تر کوم اعم وی، او جزئي اضافي حقيقي هم کيدای سي داډول چي دی اخص تر نوع دی.

**سوال**: حقيقت د جزئياتو و څه ته ويل کيږی؟

**جواب**: معني د جزئياتو ته ويل کيږی، لهذا د حيوان جزئيات، انسان، خر، آس، او دغه ډول نور دي. نو ددغه ټولو حقيقت حيوان دی. او حيوان ددوی ټولو لپاره ذاتي دی نه عرضي.

**سوال**: کالحيوان بالنسبة الي الانسان و الفرس صحی نه دی، ځکه "الانسان و الفرس" کي واو راغلي دی او واو دپاره د جمعي وی، نو معني داسوه انسان سره د فرسه، نو معني د عبارت داسوه چي حيوان ذاتي دی بالنسبت و انسان او فرس ته چي دوی دواړه سره يو ځای سي، او دغه معني صحت نه لری، بلکه حيوان دپاره د انسان جلا ذاتي دی او دپاره د فرس جلا ذاتي دی؟

**جواب**: دلته يوځای والي او جمعوالي د انسان او فرس تر مينځ مراد نه دی، بلکه هر يو دوی څخه جلا جلا دی. لهذا جمعوالی مقصود نه دی، مګر بيا هم دلته راوړل سو، او دغه راوړل

يې پر دې بنياد دی چي د جزئي په تعريف "الذی يدخل تحت حقيقة جزئياته" کي جزئيات جمعه راوړل سوی دی، او د جمعي اطلاق پر ما فوق الواحد کيږی، نو ددې د موافقت دپاره مصنف رحمه الله دوه مثاله راوړل.

## عبارت

وَإِمَّا عَرَضِيٌّ :وَهُوَ الَّذِي يُخَالِفُهُ .كَالضَّاحِكِ بِالنِّسْبَةِ إِلَى الْإِنْسَانِ .

## ترجمه

او يا به کلي عرضي وی، او دغه عرضي خلاف د ذاتي دی، لکه ضاحک چي کلي دی بالنست و خپل جزئي انسان ته.

## تشريح

**عرضي:** هر هغه کلي چي د حقيقت څخه د خپلو افرادو وتلي وی.

**مثال: ضاحک.** دغه په زيد ، عمر او ددوی په مثل په نورو حمل کيږي.او دغه ضاحک د زيد او د عمر **د ماهيت**"حيوان ناطق" **څخه** خارج دی. ځکه ضاحک نه انسان او نه حيوان دی.

### خلاصه حواشي ايوبي

**عرضي** هغه کلي دی کوم چي داخل لاندی تر حقيقت د خپلو جزئياتو نه وی.

**مثال:** ضاحک. خندا کونکي.

**سوال:** د عرضي مثال په ضاحک بالنسبة الي الانسان سره وړاندی کول صحت نه لری، ځکه عرضيت په اعتبار د خپلو افرادو وی. او انسان د ضاحک د افرادو **څخه** نه دی، که چيری وای نو بيا به دا ويل سوی وای چي ضاحک د حقيقت **څخه** د انسان وتلي دی؟

**جواب:** دلته د انسان **څخه** مراد افراد د انسان دی نه پخپله انسان، او په دې کي شک نسته چي د انسان افراد زيد ، عمر او بکر او دغه ډول نور دغه د ضاحک افراد دي. او ضاحک په حقيقت کي د خپلو افرادو "چي زيد ، عمر او پرته ددوی" داخل نه دی. ځکه د زيد حقيقت حيوان ناطق دی، ضاحک نه حيوان او نه ناطق دی. نو ضاحک ددوی د حقيقت **څخه** خارج دی.

قوله كلي: **سوال:** تعریف د جنس ښه نه دی. ځکه دغه تعریف په استدراک مشتمله دی داډول چي په تعریف کي د جنس "کلي" سره د "مقول علی کثیرین" راغلي دی او دغه مستدرک دی. ځکه کلي هغه دی چي صلاحیت په ډېرو باندي د حمل کېدو لري. او دغه معني د "مقول علی کثیرین" هم ده. او هغه تعریف چي په استدراک مشتمله وی هغه ښه نه وی؟

**جواب:** کلي جنسی صریح د ټولو پنځو کلیاتو دپاره دی په دغه وجه يې دی راوړی، ځکه د جنس ذکر کول د اقسامو په تعریف کي ضروری وی، ځکه تعریف پر جنس او فصل مشتمله وی. په دې خاطر مصنف رحمه الله کلي په تعریف کي د جنس راوړی. څرنګه په تعریف کي جار او مجرور "علي کثیرین الخ" راغلي دی، او هر جار خپل متعلق غواړی، نو د دغه متعلق دپاره "مقول علی کثیرین" راوړل سو، نو اوس استدراک نه راغلي. ځکه هر یو د قیودو څخه د جلا جلا فائده دپاره خپل سوی دی.

**سوال:** استدراک ودې ته ویل کیږي چي یو قید دوه واره مکرر راوړل سي. او د دغه دوم واري د ذکر کېدو د وجي استدراک واقع سي. او س په تعریف کي د جنس دوم واري "مقول علی کثیرین" ذکر سوی دی. لهذا دغه مستدرک دی نه کلي. ځکه هغه اول واقع سوي دی. او سره د دې شارح و "کلي" ته مستدرک ویلي دی. او دغه صحی نه دی؟

**جواب:** په لفظ کي د "کلي" یو فائده وجود لری او هغه داده: صدق د یو شي پر ډېرو باندی. او په "مقول" کي بیا دوې فائدې وجود لری. ۱: صدق پر کثیرینو باندی. ۲: جار او مجرور "علي کثیرین مختلفین" لپاره متعلق کېدل. او دغه متعلق کلي کېدای نسي. نو اولي په استدراک سره هغه قید وی چي په هغه کي فائده کم وی، څرنګه په کلي په لفظ راوړلو کي فائده کمه تر "مقول" وه په دې وجه و کلي ته مستدرک وویل سو نه و مقول ته. او دغه سوال او جواب ته په "فافهم" کي اشاره سوېده.

**سوال:** "مقول" د جنس او که د فصل په حیث په تعریف کي واقع سوی دی؟

**جواب:** دغه جنس دی، او شامله و کلي او جزئي دواړو ته دی.

**سوال:** "علي کثیرین" د څه دپاره دی؟

**جواب:** په دغه سره جزئي ووتي، ځکه هغه په زیاتو باندی نه حمل کیږی.

**سوال:** "مختلفين بالحقائق" د څه دپاره دی؟

**جواب:** په دغه سره نوع او فصل ووتل، ځکه دوی دواړه پر هغه زیاتو حمل کیږی کوم چي متفق په اعتبار د حقیقت وی.

**سوال:** " في جواب ماهو" د څه دپاره دی؟

**جواب:** په دغه سره خاصه او عرض عام ووتل، ځکه خاصه په جواب کي د سوال د "ماهو" نه راځي بلکه په جواب کي د سوال د "اى شيء" راځي. او عرض عام هم ووتي ځکه هغه هم د "ماهو" په جواب کي نه راځي.

**سوال:** خاصة النوع په مخکني قید "مختلفين بالحقائق" سره وزی، ځکه خاصة النوع په زیاتو چي مختلف په اعتبار د عدد وی حمل کیږی، نه پر مختلفو چي مختلف په اعتبار د حقیقت وی. نو اوس بیا په "ما هو" قید سره څه ډول خارج کرزی، ځکه دغه وتل د هغه شي دی چي هغه ایستل سوی دی، او دغه صحی نه دی؟

**جواب:** دلته دوه شیان دي.

۱ : **اخراج الخارج** : چي قید د خروج موجود وی ، د هغه د قید وجي یو شي خپله وتلي وی ، او تا مقصوداً نه وی ایستلي. اوس ته هغه و باسې.

۲ : **اخراج المخرج**: یو شي ایستل سوی وی بیا ته هغه وباسې. اول جائز او دوم ناجائز دی، نو دلته اخراج الخارج راغلي دی نه راخراج المخرج، ځکه په اول قید سره دی خپله وتلي دی ، چا هیتسلي نه دی، او په دوم قید و هیستل سو.

## عبارت

وَالذَّاتِيُّ :إِمَا مَقُولٌ فِي جَوَابِ مَا هُوَ بِحَسَبِ الشَّرِكَةِ المَحْضَةِ .كَالحَيَوَانِ بِالنِّسْبَةِ إِلَى الإِنْسَانِ وَالْفَرَسِ . وَهُوَ الجِنْسُ .وَيُرْسَمُ بِأَنَّهُ كُلِّيٌّ مَقُولٌ عَلَى كَثِيرِينَ مُخْتَلِفِين بِالحقائِقِ فِي جَوَابِ مَا هُوَ .

## ترجمه

او ذاتي به يا حمل كيږى په جواب كي دهغه سوال چي په ما هو سره په اعتبار د محض شركت وى لكه حيوان بالنسبة انسان او آس ته واخيستل سي. دغه جنس دى. او ددې تعريف داډول كيږى : هغه كلي چي دما هو په ځواب كي پر هغه ډيرو حمل كيږى چي هغوى په اعتبار د حقيقت مختلف وي.

## تشريح

د منطقينو په نزد دا يوه اصطلاح ده چي څه وخت دوى د يو شي د حقيقت په هكله پوښتنه كوي نو په "ما هو" سره سوال كوى. د مثال په توګه دوى وايي " الانسانه ماهو". ددې مطلب دادى چي د انسان حقيقت څه شي دى؟ په دغه وجه څه وخت چي د يو شي په هكله په "ما هو" سره سوال وسي نو هلته د سائل مقصد پورا حقيقت د هغه شي پوښتل دى. او تر يوه شي زيات د شيانو د حقيقت پوښتنه وسي نو ددغه شيانو په حقائقو كي چي كوم حقيقت ددوى تر مينځ مشترك وى هغه په جواب كي به بيانيږى، د مثال په توګه "الانسان و الفرس ما هما". او س دلته هغه حقيقت پوښتل سوى دى كوم چي په كامله توګه سره ددوى تر مينځ مشترك وى. او هغه حيوان دى.

## خلاصه حواشي ايوبي

كه چيرى سوال په " ما هو" سره د انسان او آس په هكله وسي، او وويل سي " الانسان و الفرس ما هما" ؟ دلته سوال كونكي د هغه حقيقت پوښتنه كوى كوم چي ددوى تر مينځ محض شريك وى، او ددوى څخه د يوه سره خاص نه وى. اوس چي موږ و كتل نو ددوى تر مينځ بل كوم حقيقت پرته د حيوان تر لاسه نسو چي محض ددوى تر مينځ مشترك وى. نو حيوان په جواب كي ورته وويل سي. ځكه حيوان نه د انسان سره خاص دى چي محض دى حيوان دى نه بل

ځوک، او دغه ډول حیوان نه د فرس سره خاص دی. او که چیری داسي وويل سي "الانسان ما هو" دلته په جواب کي حیوان نه ویل کیږی، ځکه حیوان يو داسي ماهیت نه دی چي محض خاص تر انسان پوری وی، په دې وجه دی د انسان په هکله په "ما هو" سره د سوال کولو په جواب کي حیوان نه ویل کیږی.

**سوال:** د جنس تعریف يو واری په دې الفاظو سره "اما مقول في جواب ما هو بحسب الشركة المحضة" مصنف رحمه الله وکړي نو بیا دوم ځلي په دې الفاظو "يرسم بانه كلي مقول الخ" سره کړل مستدرک دی، او د فائدې څخه خالي دی؟

**جواب:** اول تعریف ضمناً دی او دوم صراحتاً دی. اول د پوه کس لپاره او دوم د غبي لپاره دی. لهذا مصنف د دغه مقصد د پورا کولو په خاطر دوم ځلي صریح تعریف راوړي.

**سوال:** "مختلفين بالحقائق" قید په تعریف کي د جنس د څه دپاره راوړل سوی دی؟

**جواب:** دغه فصل دی، او په دې سره نوع د تعریف څخه د جنس ووتل، ځکه نوع که څه هم پر کثیرینو حمل کیږی، مګر هغه کثیرين مختلفه په اعتبار د عدد وی نه د ه حقیقت.

**سوال:** په تعریف کي د جنس قید د "ماهو" د څه دپاره دی؟

**جواب:** په دغه سره فصل ووتي. ځکه فصل که څه هم حمل کیږی، مګر هغه په جواب کي د سوال د "ماهو" نه حمل کیږی، بلکه د "اى شيء هو في ذاته" حمل کیږی. او دغه ډول په دغه قید سره خاصه هم ووتل، ځکه خاصه که څه هم پر کثیرنو حمل کیږی، مګر دغه په جواب کي د سوال د "ماهو" نه حمل کیږی، بلکه په جواب کي د "اى شيء هو في عرضه" حمل کیږی. او غه ډول په دغه قید سره عرض عام هم ووتي، ځکه عرض نه د " ماهو" او نه د "اى شي" په جواب کي حمل کیږی.

**سوال:** " بالحقائق " قید د جنس په تعریف کي د څه دپاره دی؟

**جواب:** په دغه سره احتراز د نوع، فصل قریب، د نوع د خاصه څخه دی، ځکه نه فصلِ قریب پر کثیرینو چي مختلف په اعتبار د حقیقت وی حمل کیږی، او نه خاصه د نوع.

﴿**فائده**﴾: دلته دوه شیان دي. ۱: فصل قریب. ۲: خاصة النوع. دغه دواړه لکه څرنګه د تعریف څخه د جنس په قید سره د "مختلفين بالحقائق" وزی، ځکه يو هم د دوی څخه مقول پر هغه

کثیرینو نه دي کوم چي په اعتبار د حقیقت مختلف وي. دغه ډول په دې قید " في جواب ما هو " سره هم وزی. ځکه نه فصل په جواب کي د سوال د "ماهو" راځي او نه خاصه، لکه تاچي اوس وپیژندل. او په آخرني قید "ما هو" سره فصل بعید او ابعد ، خاصه بعید او دغه ډول نور تولهٔ په دغه آخری قید "ماهو" سره وزي، نه په "بالحقائق" سره ، ځکه دوی هم تولهٔ پر هغه کثیرینو حمل کیږی کوم چي مختلف په اعتبار د حقیقت وي، لهذا ښه خبره داده چي فصل قریب او خاصه د نوعِ هم په آخری قید "ماهو" سره ووزی، ددې دپاره چي هیستل په یوه لار سي، نه په مختلفو لارو، چي بیا د پرېشاني جوړېدلو سبب ګرزی.

## عبارت

وَإِمَّا مَقُولٌ فِي جَوَابِ مَا هُوَ بِحَسَبِ الشَّرِكَةِ وَالخُصُوصِيَّةِ مَعًا .كَالْإِنْسَانِ بِالنِّسْبَةِ إِلَى أَفْرَادِهِ نَحْوُ زَيْدٍ وَعَمْرٍو وَهُوَ النَّوْعُ .وَيُرْسَمُ بِأَنَّهُ كُلِّيٌّ مَقُولٌ عَلَى كَثِيرِينَ مُخْتَلِفِينَ بِالْعَدَدِ دُونَ الحَقِيقَةِ فِي جَوَابِ مَا هُوَ .

## ترجمه

او يا به دغه کلي په جواب کي دسوال د "ما هو" په اعتبار د خصوصيت او شرکت د دواړو حمل کيږي دغه نوع ده. لکه انسان چي بالنسبت و خپلو افرادو ته لکه زيد او عمر واخيستل سي. او ددې داډول تعريف کيږي: يو داسي کلي ده چي په جواب کي د سوال د ماهو پر داسي کثيرينو باندې حمل کيږي چي هغوی په اعتبار د عدد مختلف وي نه ده حقيقت.

## تشريح

**نوع:** هر هغه کلي چي په جواب کي د هغه سوال واقع سي کوم چي په ما هو سره په اعتبار د شرکت (داډول چي دغه سوال په ما هو سره ددؤو شيانو څخه وي لکه "زيد و عمر ما هما") او د **خصوصيت** (داډول چي په سوال کي يو شي ذکر سي لکه "زيد ما هو") ددواړو وي، دغه ته نوع ويل کيږي.لکه انسان بالنسبت و زيد او عمر ته داډول چي وويل سي "زيد و عمر ما هما" نو په جواب کي انسان واقع کيږي.ځکه دغه انسان تمام ماهيت مشترکه د زيد او د عمر ترمينځ دی. او دغه ډول ددوی څخه د يوه په باره کي سوال وسي او وويل سي "زيد ما هو" نو په جواب کي انسان واقع کيږي. ځکه دغه انسان هغه تمام ماهيت دی چي خاص دده سره دی. **د تعريف خلاصه** دا سوه: هر هغه کلي چي پر ډيرو باندي حمل کيږي کوم چي د عدد په اعتبار سره مختلف وي نه د حقيقت.

## خلاصه حواشي ايوبي

**د تعريف بيان:** "مقول" جنس شامل و کلي او جزئي دواړو ته دی. او دده دغه قول "علي کثيرين" فصل او جزئي په ووتي، ځکه جزئي پر ډيرو باندی نه حمل کيږی.

**سوال:** "علي کثيرين" قيد د څه لپاره راوړل سوی دی؟

**جواب:** دغه فصل دی، او په دغه سره جزئي وزی، ځکه هغه پر یوه حمل کیږی نه پر ډیرو.

**سوال:** موږ دا خبره نه منو چي جزئي هم حمل کیږی، ځکه جزئي ذات او محمول وصف وی. نو ذات د وصف پر ځای راتلای نسي؟

**جواب:** دلته دوه شیان دي. ۱: ظاهر. ۲: حقیقت، په حقیقت کي جزئي حمل کېدای نسي، البته په ظاهره حمل کېدای سي. نو دلته و ظاهر ته کتل سوی دی.

**سوال:** کوم داسي مثال وجود لری چي په ظاهره جزئي حمل سوی وی؟

**جواب:** هو، لکه "هذا زید". اوس دلته "هذا" مبتدأ، او "زید" خبر او محمول دی، نو په ښکاره زید پر "هذا" باندی حمل سوی دی، مګر په حقیقت کي کلي پر هذا محمول دی، تقدیر د عبارت دا جوړیږی " هذا مسمي بزید" یعني دغه مسمي په زید سره دی، او مسمي په زید سره کلي دی، افراد لرلای سي، که څه هم په خارج کي دغه کلي په یوه فرد کي حصر ده.

**سوال:** تقریر د سوال دا دی چي تعریف د نوع مانع د جنس څخه نه دي. ځکه دغه تعریف د نوعي په جنس باندې هم صادقیږي. ځکه جنس هم په هغه ډیرو باندي حمل کیږي کوم چي مختلف د عدد په اعتبار سره وي نه د حقیقت په اعتبار سره، لکه وویل سي "زیدوعمرحیوان". لهذا حیوان جنس دی او مقول پر مختلفینو بالعدد سو. نو په "مختلفین بالعدد" سره جنس نه ووتی. ځکه په قید سره هغه شي وزي کوم چي د دغه قید سره ضدیت لري. او جنس د دغه قید سره ضدیت نه لري لهذا په دغه قید "مختلفین بالعدد دون الحقیقة" سره جنس د تعریف څخه د نوعي نه ووتي؟

**جواب:** حمل د شي پر ډیرو چي مختلف په اعتبار د عدد وی نه د حقیقت په دوه ډوله کیږی.

۱: په مستقله توګه سره. ۲: د بل په ضمن کي. نو حمل د نوع پر ډیرو چي مختلف په اعتبار د عدد وی دغه حمل مستقلاً وی نه د بل په ضمن کي. او جنس دغه ډول نه دی، ځکه جنس که څه هم پر کثیرینو چي د عدد په اعتبار سره مختلفه وي حمل کیږی، مګر دغه حمل یې مستقلاً نه دی بلکه په ضمن کي د افرادو د نوع دی، د مثال په توګه که چیری سوال وسي " زید و عمر ما هما" نو په جواب کي حیوان نه ویل کیږی، که چیری ویل کېدای نو دغه به استقلالاً وای. بلکه

په جواب کي يې "حيوان ناطق" ويل کيږی، او د "حيوان ناطق" د مجموعې په ضمن کي "حيوان" وجود لری، لهذا حيوان پر افرادو د نوعِ په ضمن کي د مجموعې حمل کيږی، نه مستقلاً.

سوال: د کل او د کلي تر مينځ څه فرق سته؟

جواب: ۱): کل په خپلو اجزاؤ سره موجوده گرزی، لکه سکنجبين چي په اوبو، عسلو او سرکه سره موجوده گرزی، او کلي داسي نه دی، او د کلي په صورت کي جزئي په کلي سره موجوده گرزی، د مثال په توگه زيد حيوان ناطق مع هذا التشخص دی، نو ترڅه وخته پوری چي حيوان ناطق نه وی تر هغه وخته پوری زيد وجود موندلای نسي.

۲): کلي پر خپلو جزئياتو باندی حمل کيږی، د مثال په توگه ويل کيږی "زيد انسان". او س دلته انسان چي کلي دی پر زيدباندی حمل سوی دی. او کل په خپلو اجزاؤ باندی حمل کېدای نسي، د مثال په توگه داسي ويل کېدای نسي "الخل سکنجبين" يعني سرکه سکنجبين دی. ځکه حمل کول د يوشي پر بل شي باندی تقاضي ددې کوی چي محمول او محمول عليه په خارج کي متحد وی، د مثال په توگه "زيد قائم" اوس په خارج کي زيد او قائم تر مينځ اتحاد وجود لری. او جزء کېدل په خارج کي د مغايرت تقاضي کوی. اوس سکنجبين او سرکه په خارج کي جلا جلا شيان دي، ددوی ترمينځ هيڅ اتحاد نسته چي حمل صحت پيدا کړی.

**سوال:** کلي حمل کيږی او کل نه حمل کيږی، دغه خبره مطلقاً ده؟

جواب: ددوی ترمينځ دغه فرق هغه وخت دی چي د اجزاؤ څخه اجزائي خارجيه مراد سي، او هم دغه اجزائي حقيقه دی، او که چيری اجزائي ذهنيه مراد سي نو بيا په دغه صورت کي د کل او کلي تر مينځ دغه فرق وجود نه لری، بلکه په دغه صورت کي کل هم پر اجزائو ذهنيو باندی حمل کيږی.

**بالعدد:** لکه زيد، عمر او ددوی څخه سېوا نور افراد د انسان.

**سوال:** موږ دا خبره نه منو چي زيد، عمر او د انسان د نورو افرادو حقيقت يو دی، ځکه د زيد حقيقت "حيوان ناطق مع هذا التشخص" دی، او د عمر دا بيا "حيوان ناطق مع هذا التشخص" دی، لهذا

د هر يوه په حقيقت کي تشخص داخل دی، ځرنګه د هر يوه تشخص د هغه بل څخه جلا وی دغه ډول د هر يوه حقيقت ددوی څخه د هغه بل د حقيقت څخه جلا دی؟

**جواب:** موږ دا خبره نه منو چي دوی په اعتبار د حقيقت مختلف دي، بلکه دوی سره يو دي، پاته "مع هذا التشخص" دغه د هر يوه څخه د حقيقت د افرادو د انسان څخه وتلي دی، او حقيقت د هر يوه حيوان ناطق دی، او "مع هذا التشخص" د حقيقت څخه د افرادو خارج دی. او دغه محض ددوی تر مينځ د تميز او فرق دپاره راوړل کيږی.

**دوهم جواب:** مراد دلته حقيقت څخه حقيقت مشترکه ده نه حقيقت مختصه د هر فرد.

"**جواب ماهو**" په دغه سره د فصل څخه احتراز راغلي د مثال په توګه "ناطق"، او دغه ډول د **خاصه** (لکه ضاحک) څخه احتراز راغلي، او عرض عام (ماشي) څخه احتراز راغلي. ځکه فصل په جواب کي د سوال د "ای شيء هو في ذاته" راځي، او دوم په جواب کي د سوال د "ای شيء هو في عرضه" راځي. او دريېم د يوه شي په جواب کي هم نه راځي.

## عبارت

وَإمَّا غَيْرُ مَقُولٍ فِي جَوَابِ مَا هُوَ بَلْ مَقُولٌ فِي جَوَابِ أَيُّ شَيْءٍ هُوَ فِي ذَاتِهِ .وَهُوَ الَّذِي يُمَيِّزُ الشَّيْءَ عمَّا يُشَارِكُهُ فِي الجِنْسِ كَالنَّاطِقِ بِالنِّسْبَةِ إِلَى الْإِنْسَانِ، وَهُوَ الْفَصْلُ .وَيُرْسَمُ بِأَنَّهُ كُلِّيٌّ يُقَالُ عَلَى الشَّيْءِ فِي جَوَابِ أَيُّ شَيْءٍ هُوَ فِي ذَاتِهِ .

## ترجمه

او یا به مقول په جواب کي د ماهو نه وی، بلکه په جواب کي د سوال "د ای شيء هو في ذاته" وی، او دغه هغه کلي دی کوم چي شي د هغه شیانو څخه جلا کوی چي هغوی دده سره په جنس کي شریکان وي، لکه ناطق چي بالنسبت و انسان ته واخیستل سي، او دغه فصل دی، او ددې داډول تعریف کیږی: دا یو داسي کلي دی چي په جواب کي د سوال د "ای شيء هو في ذاته" راځي.

## تشریح

**فصل:** هر هغه کلي چي د "ماهو" په جواب کي نه حمل کیږي بلکه د "أی شي هو فی ذاته" په جواب کي په شي باندي حمل کیږي.

**سوال:** مصنف ولي د مخکني کلیاتو په ډول تعریف یې داسي و نه کړي "الکلی ان کان مقولا فی جواب أی شی هو فی ذاته" که چیري کلي د " أی شی هو فی ذاته" په جواب کي په شي باندي حمل کیږي. لهذا ددې قید "غیر مقول فی جواب ما هو" څه فائده ده؟

**جواب:** په حقیقت کي د فصل پر تعریف یو اعتراض واردیدي. چي تقریر د هغه اعتراض دادی: لفظ د "أی" د هغه شي د طلبولو دپاره وضع سوی دی چي هغه مسؤل عنه د هغه شیانو څخه جلا کوي چي هغه دده سره په مضاف الیه کي د "أی" شریک وي. د مثال په توګه تا د لری څخه یو شي و لیدي بیا ستا یقین سو چي هغه شي حیوان دی. مګر تا ته دا معلومه نه سوه چي هغه کوم حیوان دی. نو تا سوال و کړی" أی حیوان ذالک" هغه کوم حیوان دی؟ نو اوس دلته د هغه شي پوښتنه کیږي چي هغه مشار الیه د هغه شیانو څخه جلا کوي چي هغوی د "أی" په مضاف الیه "حیوان" کي د مشار الیه سره شریکان ول. اوس تر دې ورسته که چیري یو کس

سوال وکړي او ووايي" الانسان أی شی هو فی ذاته" نو دلته سوال کونکي يوداسي ذاتي د ذاتياتو څخه د انسان طلبوي چي هغه انسان د هغه شيانو څخه جلا کړی چي هغه د انسان سره په شيئت کي شريک وي. نو اوس په جواب کي ددغه سوال لکه څرنګه د ناطق ويل صحت لری دغه ډول د حيوان ناطق ويل هم صحت لری. (ځکه حيوان ناطق انسان جلا کوي). ناطق فصل او حيوان ناطق حد دی. لهذا د فصل تعريف مانع نه سو. ځکه په ده کي حد داخل سو. او حال دا چي حد فصل نه دی؟ خلاصه دا سوه چي مصنف دغه سوال په نظر کي لري په دغه وجه ده وويل چي فصل هغه کلی دی چي په مسؤل عنه باندي د "ما هو" په جواب کي نه بلکه د "أی شی هو فی ذاته" په جواب کي حمل کيږي. نو اوس دغه اعتراض دفع سو. او دغه دفعوالي ئې په دوه ډوله دی.

**اول:** که څه هم په لغت کي په " أی" سره مطلق مميز او جلا کونکي طلبيږي مګر په اصطلاح کي د منطقينو دغه ډول نه ده بلکه په ده سره هغه جلا کونکي طلبيږي چي هغه د "ما هو" په جواب کي نه واقع کيږي. نو اوس حد ووتي. ځکه دی د "أی" په جواب کي نه واقع کيږي.

**دوم:** مورږ دا نه منو چي په "أی" سره هغه شي طلبيږي چي هغه مسؤل عنه د هغه شيانو څخه جلا کوي چي هغه د مسؤل عنه سره په شيئيت کي شريک وي. بلکه په " أی" سره هغه شي طلبيږي چي هغه مسؤل عنه د هغه شيانو څخه جلا کوي کوم چي د مسؤل عنه سره په جنس کي شريک وي. ځکه فصل هغه وخت طلبيږي چي سائل ته دا معلومه وي چي دغه مسؤل عنه لپاره جنس سته. او که چيري ورته معلوم نه وه نو بيا فصل نه طلبيږي. ځکه کوم شي لپاره جنس نه وی د هغه لپاره فصل هم نه وي. (محقق طوسي) نو اوس په حد سره سوال نه واردیږي. ځکه حد مسؤل عنه په جنس کي د نورو څخه نه جلا کوي.

"ای شيء هو في ذاته" **سوال:** "ای" مرفوع او که مجروره دی؟

**جواب:** مرفوع.

**سوال:** مرفوعيت يې صحت نه لری، ځکه "ای" مضاف اليه لپاره د "جواب" دی. او مضاف اليه مجروره وی نه مرفوع؟

**جواب:** په اصل کي "ای" مرفوع راځي، ځکه سوال د انسان په هکله مثلاً وسي نو داسي ویل کیږی " الانسان ای شيء هو في ذاته"، په دغه مثال کي "ای" مرفوع بناء برخبریت د "الانسان" څخه دی. نو "ای شيء" ددغه سوال څخه راواخیستل سو، او هم اوس پر هغه زاړه حال پاته دی. څرنګه ددی زوړ حال د مرفوعیت وو، نو اوس هم هغه حال یې برقراره دی.

**فانه یمیز الإنسان عما یشارکه"** : ناطق انسان د هغه شیانو څخه جلا کوی کوم چي د انسان سره په حیوانیت کي شریکان دي، مثلا سوال وسي " الانسان ای شيء هو في ذاته" نو په جواب کي یې "ناطق" راځي. ځکه په "ای شي هو في ذاته" سره د سوال کولو په صورت کي مطلوب د سوال کونکي هغه شي وی چي هغه جلا کونکي په ذات کي وی. او هر هغه شي چي بل شي په ذات کي جلا کوی هغه جواب جوړیدای سي، نو ناطق جواب کي راتلای سي.

**﴿فائده﴾** : انسان او د حیوان د نورو افرادو دپاره حیوان جنسِ قریب دی. او "جسم نامي" ددوی دپاره جنس بعید دی. او دغه د انسان علاوه و درختي ته هم شامله دی. او "جسم مطلق" د انسان دپاره جنس ابعد دی. او شامله د انسان څخه سپوا و ډبری ته هم دی. او "جوهر" ابعد الابعد جنس دپاره د انسان دی. او دغه د انسان څخه سپوا و عقول عشره ته هم دی. "ناطق" فصل قریب دپاره د انسان دی( حیوان پخپله مستقلاً وجود نه لری، بلکه ناطق چي فصل دی حصول د حیوان په انسان کي تر سره کړی). "حساس" فصلِ بعید دی، او په ده سره د "جسم نامي" حصول په حیوان کي اوسي. او "نامي" فصل ابعد دی، په دغه سره د جسم مطلق حصول په جسم نامي کي تر سره سي. او "قابل الابعاد" بیا فصل ابعد الابعد دی، په دغه سره د جوهر حصول په "جسم مطلق" کي وسي. ابعاد ثلاثه د اوږدوالي، پلنوالي او جوروالي څخه عبارت دي.

**﴿فائده﴾**: ۱: **جنس قريب**: که چېرې جنس په جواب کې د سوال د ماهيت او د بعض مشارکاتو څخه د ماهيت واقع کيږي . او دغه جنس په جواب کې د سوال د ماهيت او د ټولو مشارکاتو څخه واقع کيږي نو دغه جنس ته جنس قريب ويل کيږي . لکه حيوان چي ويل کيږي په جواب کې د سوال د انسان او د فرس څخه . دغه ډول حيوان په جواب کې د سوال د انسان او د بقر او د فرس څخه ويل کيږي .

۲: **جنس بعيد**: که چېرې دغه جنس جواب ؤ د سوال څخه د ماهيت او د بعضې مشارکاتو څخه د ماهيت نو دغه جنس بيا جواب ؤ د سوال څخه د ماهيت او د بعضې مشارکاتو آخر څخه نو دغه جنس چي اوله پلا په جواب کې واقع کيږي . دغه جنس ته جنس بعيد ويل کيږي .لکه جسم نامي چي ويل کيږي په جواب کې د سوال کولو د انسان او د نباتات څخه . او دغه جسم نامي بيا نه ويل کيږي په جواب کې د سوال کولو د انسان او د فرس څخه . بلکې په دغه وخت کې يې بيا په جواب کې حيوان واقع کيږي . د دې وجهې څخه چي څه وخت سوال د امور مختلف الحقائق څخه وسي دغه وخت مقصود په سوال سره انکشاف د داسې حقيقت دی چي دغه حقيقت تام الاشتراک وي په مابين کې د دغه امور مختلفه او د دې امورو مختلفه په مابين کې دا ډول بل تام الاشتراک حقيقت نه وي . لهذا څه وخت چي سوال د انسان او د فرس څخه وسي په دغه وخت کې مقصود انکشاف د داسې حقيقت دی چي هغه د انسان او د فرس په مابين کې تام الاشتراک وي . او دغه حقيقت جسم نامي نه دی. ځکه پرته د جسم نامي بل يو داسي حقيقت سته چي هغه ددوي په ما بين کي تام الاشتراک دی او هغه حيوان دی . په دغه وجه بيا چي سوال د انسان او د فرس څخه وسي نو په جواب کې يې جسم نامي نه واقع کيږي . بلکې حيوان واقع کيږي . او مرتبې د **بعد** په اعتبار سره د تعدد د جوابونو معلوميږي . يعنې که چېرې يو جواب ؤ. نو دغه جنس قريب دی.او که چيري دوه جوابونه وه نو دغه اول جنس بعيد په يوه مرتبه سره دی. او که چيري درې جوابونه وه نو دغه اول بيا جنس بعيد په دوو مرتبو سره دی. او که چيري څلور جوابونه وه نو دغه جنس اول بعيد په درو مرتبو سره دی. لکه سوال د انسان او د فرس په باره کي وسي نو په جواب کي ئي حيوان راځي . او که سوال د انسان او نبات څخه وسي نو جواب يې جسم نامي دی . او که

چېرې د دغه انسان او د بعضې مشارکاتو څخه د انسان سوال وسي لکه فرس نو په جواب کې بيا حيوان واقع کيږي . نو دغه جسم نامي ته بعيد په يوه درجه سره ويل کيږي . او که چېرې د دغه انسان او د بعضې مشارکاتو آخرو څخه سوال وسي . لکه **الانسان والحجر ماهما** نو په جواب کې يې مطلق جسم واقع کيږي . او که چېرې د دغه انسان او د بعضې مشارکاتو د انسان په باره کې سوال وسي لکه **الانسان والفرس ماهما** . نو په جواب کې يې جسم نامي ويل کيږي . او که چېرې د دغه انسان او د بعضې مشارکاتو څخه د انسان سوال وسي لکه **الانسان والفرس ماهما** نو په جواب کې يې حيوان واقع کيږي . لهذا جسم مطلق جنس بعيد په دوو درجو سره دی .يعني جنس ابعد دی . او ته نور په دغه مذکور باندې قياس کړه . نو خلاصه دا سوه چي عدد د اجوبو په زيات وي تر عدد د بعد .يعنی که جواب يو ؤ نو بعد نسته او که دوه جوابونه وه نو بيا يو بعد سته . او که درې جوابونه وه نو بيا بعد په دوو درجو سره سته او که څلور جوابونه وه بيا بعد په دريو درجو سره سته .

**كالناطق بالنسبة الي الإنسان**" ناطق فصل دی، او دغه انسان د هغه شيانو څخه جلا کوی چي دده سره په جنس کي چي حيوان دی شريکان وي. د مثال په توګه وويل سي "الانسان ای حيوان هو في ذاته" . ځکه د انسان سره په جنس کي ډېر شيان شريکان دي د مثال په توګه آس، پوسه ، غويی او دغه ډول نور. نو ددغه مخکني سوال په جواب کي "ناطق" راځي. ځکه ناطق انسان د خپلو شريکانو څخه جلا کوی. نو دغه "ناطق" فصل دی.

"اعلم ان السوال عن الماهية " که چيری د يو شي په هکله په "ای شي هو في ذاته" سره پوښتنه وسي د مثال په توګه د انسان په باره کي سوال دا ډول وسي "الانسان أی شی هو فی ذاته" نو د دغه سوال په جواب کي چي کوم فصل راسي صحت لری، عام تر دي قريب او که بعيد وی.(ځکه په سوال کي لفظ د" شي" راغلي دی.اولفظ د" شي" د يو جنس سره د انسان خاصوالي نه لري. نو دغه ډول په دغه صورت کي چي کوم جواب راځي هغه هم خاصوالي د يو فصل سره ددغه فصولو نه لري)، ځکه څه وخت چي په "أی شي هو فی ذاته" سره سوال وسي نو په دغه سره هغه شي طلبيږي چي هغه تميز ذاتي فائده کوی.او هر هغه شي چي تميز ذاتي فائده کوي هغه دده صلاحيت لري چي په جواب کي د "أی

شی هو فی ذاته" راسي، نو دا معلومه سوه چي هر يو ددغه فصولو څخه په جواب کي د " الانسان أی شی هو فی ذاته" واقع کېدا سي. البته که چيري سوال خاص سي اود شي په ځای حيوان يا بل جنس وويل سي داډول "الانسان أی حيوان"" الانسان أی جسم" نو په دغه صورت کي هر فصل د انسان ويل کېدای نسي، بلکه هغه فصل ويل کيږي چي هغه انسان د هغه شيانو څخه جلا کوي چي هغه دده سره په هغه جنس کي شريک وي چي هغه مضاف اليه د لفظ د "أی" واقع سوي وی. لهذا سوال قرينه د جواب ده. په سوال کي چي کوم جنس ذکر سوی نو په جواب کي هغه فصل ذکر کيږی کوم چي دغه مسؤل عنه د هغه شيانو څخه جلا کوی کوم چي د مسؤل عنه سره په ذکر سوی جنس کي شريکان وي.

فافهم. **سوال:** موږ دا خبره نه منو چي سوال مطلقاً قرينه د جواب وی، بلکه سوال هلته قرينه ده که چيری د يو شي تميز ذاتي په جنس قريب کي طلب سوی وی، نو دلته سوال قرينه پر دې ده چي دده په جواب کي به فصل قريب واقع کيږی، د مثال په توګه سوال وسي "الانسان ای حيوان هو في ذاته " . دغه سوال قرينه پر دې چي په جواب کي به فصل قريب راځي، ځکه بعيد په جواب کي راتلای نسي، او که چيری تميز ذاتي د يو شي په جنس بعيد کي طلب سوی وی، د مثال په توګه وويل سي "الانسان ای جسم هو في ذاته " نو اوس دلته سوال قرينه پر جواب نه ده، ځکه دلته په جواب کي لکه "جسم نامي" چي راتلای سي نو "حيوان" هم راتلای سي، لهذا دلته سوال قرينه پر جواب نسوه؟

**جواب:** په هر صورت کي سوال قرينه پر جواب ده، ځکه د يو شي تميز ذاتي په کوم جنس کي طلب سي، او د هغه په هکله سوال وسي نو په جواب کي هغه فصل راځي کوم چي دغه شي په دغه جنس کي د نورو څخه جلا کوی،او ددغه فصل راوړل کي کومه خطا نسته. اوس که په دغه صورت کي بل فصل راوړل سي چي په دغه سره هم جلا والي راځي نو دا هم صحی ده.

**سوال:** " جواب ای شيء هو في ذاته " دغه قيد د څه لپاره دی؟

**جواب:** په دې سره جنس، نوع او عرض عام ووتل، ځکه جنس، او نوع په جواب کي د سوال د "ما هو" واقع کيږی، نه د "ای شي هو في ذاته " کي. پاته عرض عام سو نو هغه د کوم سوال په

جواب کي نه واقع کيږی. خاصه هم په دغه قيد ووزی، ځکه خاصه په جواب کي د سوال د "ای شي هو في عرضه" واقع کيږی. نو تعريف مانع او جامع و ګرزيدی.

## عبارت

وَأَمَّا الْعَرَضِيّ : فَإِمَّا أَنْ يَمْتَنِعَ انْفِكَاكُهُ عَنِ المَاهِيَّةِ، وَهُوَ الْعَرَضُ اللَّازِمُ .أَوْ لَا يَمْتَنِعَ وَهُوَ الْعَرَضُ المَفَارِقُ .وَكُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا إِمَّا أَنْ يَخْتَصَّ بِحَقِيقَةٍ وَاحِدَةٍ وَهُوَ الخَاصَّةُ .كَالضَّاحِكِ بِالْقُوَّةِ وَالْفِعْلِ لِلْإِنْسَانِ .وَتُرْسَمُ بِأَنَّهَا كُلِّيَّةٌ تُقَالُ عَلَى مَا تَحْتَ حَقِيقَةٍ وَاحِدَةٍ فَقَطْ قَوْلاً عَرَضِيًا .وَإِمَّا أَنْ يَعُمَّ حَقَائِقَ فَوْقَ وَاحِدَةٍ وَهُوَ الْعَرَضُ الْعَامُّ .كَالْمُتَنَفِّسِ بِالْقُوَّةِ وَالْفِعْلِ بِالنِّسْبَةِ لِلْإِنْسَانَ وَغَيْرِهِ مِنَ الحَيَوَانَاتِ. وَيُرسَمُ بِأَنَّهُ كُلِّيٌّ يُقَالُ عَلَى مَا تَحْتَ حَقَائِقَ مُخْتَلِفَةٍ قَوْلاً عَرَضِيًا.

## ترجمه

د دغه کلي عرضي جلا والي د ماهيت څخه به يا ممتنع وی دغه عرض لازم دی، او يا به ممتنع نه وی. او دغه عرض مفارق دی. هر يو د لازم او مفارق څخه خاص تر يو حقيقت پوری وی نو دغه ته خاصه ويل کيږی، لکه انسان د خندا صلاحيت لرل او يا خندل. او د خاصه تعريف داډول کيږی : خاصه يو داسي کلي عرضي ده کوم چي صرف پر افرادو د يوه حقيقت حمل کيږی په حمل عرضي سره. او يا به تر يوه زيات حقائقو ته عامه او شامله وی. دغه عرض عام دی. لکه د انسان او دده څخه سبوا د نورو افرادو د حيوان صلاحيت د ساه اخيستولو لرل، او يا بالفعل ساه اخيستل. او تعريف يې داډول کيږی: هغه کلي عرضي چي د مختلفو حقائقو پر افرادو باندی په حمل عرضي سره حمل کيږی.

## تشريح

**عرض لازم :** هر هغه کلي چي د خپلو افرادو د ماهيت څخه وتلي وی، د دغه خارجي شي جلا والي د افرادو څخه د ماهيت به ممتنع وی، او يا به ممتنع نه وی. که چيري ممتنع وی، نو دغه ته عرض لازم ويل کيږی.

**مثال:** طاق والي د درو، اوس درې بېله طاقوالي کېدای نسي.

**عرض مفارق:** هر هغه کلي عرضي چي دده جلا والي د ماهيت څخه ممتنع نه وی دغه ته عرض مفارق ويل کيږي. لکه خندا بالنسبت و انسان ته، ډير داسي کسان بالفعل سته چي هغه خندونکي نه وي. لهذا د خندا بالفعل جلا والي د انسان څخه ممتنع نه دی.

**خاصه:** هر هغه کلي عرضي چي په حمل عرضي سره د يوه حقيقت پر افرادو باندی حمل کيږی. لکه ضاحک چي پر افرادو د انسان حمل کيږی.

**عرض عام:** هغه کلي عرضي چي پر افرادو د يوه حقيقت او پر افرادو د مختلفو حقائقو په حمل عرضي سره حمل کيږی. لکه ماشي يعني تګ کونکي دغه انسان او پر نورو افرادو د حيوان په حملِ عرضي سره حمل کيږی.

په دې خبره سره پوه سه چي عرضي دوه قسمه لري. ۱: خاصه : ۲: عرض عام.

**سوال:** کلي عرضي ولي په دغه دو قسمونو کي حصر دی؟

**جواب:** ځکه عرضي به يا پر افرادو د يوه حقيقت حمل کيږی او يا پر افرادو د ډيرو حقيقتونو که چيری پر افرادو د يوه حقيقت حمل کيږی نو دغه ته خاصه ويل کيږی. او که چيری پر افرادو د ډيرو حقائقو حمل کيږی نو دغه ته عرض عام ويل کيږی. نو د کلي اقسام په پنځه کي حصر سوه. ۱: جنس. ۲: نوع. ۳: فصل. ۴: خاصه. ۵: عرض عام.

**سوال:** تقسيم د مصنف "په دغه طريقه سره چي ده هغه کلي چي خارج د ماهيت څخه د افرادو وی اول دواره و عرض لازم او مفارق ته تقسيم کړي. دوم ځلي بيا ده هريو ددوی څخه و عرض عام او خاصه ته تقسيم کړي" صحی نه دی. ځکه دلته يوه د دوو خرابيو څخه پيښيږی، ۱: د اقسامو اوه کېدل داډول چي مصنف رحمه الله عرض لازم او مفارق مستقل قسمونه د کلي و ګرزول "ځکه ده کلي خارجي اولا و دوی ته تقسيم کړي"، او بيا ده عرض عام او مفارق د کلي خارجي مستقل قسمونه شمار کړل داډول چي ده هر يو ددوی څخه په هغه طريقه سره تعريف و کړي "يرسم الخ" لکه ده چي د هغه مخکني کلياتو تعريف کړي دی. لهذا څلور قسمونه عرضي او درې ذاتي( جنس،نوع اوفصل) سوه. لهذا ټوټل قسمونه اوه سوه. او حال دا چي د کلي پنځه قسمونه دي نه اوه؟ لهذا د مصنف لپاره دغه ډول تقسيم کول په کار و چي ده کلي خارجي اول دواره و عرض عام او خاصه ته تقسيم کړي وای. بيا ئې لازم او مفارق ددوی دو قسمونه ګرزولي وای. نو اولاً به اقسام د کلي به په پنځه قسمونه کي حصر سوي وای.

۲: د جمهورو مخالفت راتلل داډول چي هغوی خاصه او عرض عام د اقسا مو اولیو څخه د کلي ګرزولي دي.او د مصنف د تقسیم مطابق خاصه او عرض عام د اقسامو ثانویه څخه د کلي خارجي جوړ سوي دي.او مخالفت د جمهورو بېله ضرورته مناسب نه دی؟

**اول جواب:** د کلي خارجي د دغه څلورو اقسامو رجوع و دوو اقسامو ته کیږي دغه ډول چي دغه کلي خارجي به تر افرادو د یوه ماهیت خاص وي او یا به نه وي. لهذا د تقسیم څخه ښکاره څلور والي د کلي خارجي د اقسامو دي.مګر حاصل د دغه څلورو دوه والي دی.لهذا مصنف و حاصل ته د اقسامو کتلي دي. که څه هم تا (اعتراض کونکي) و ظاهر ته د تقسیم کتل کړي دی.

**دوم جواب:** د کلي خارجي اقسام په څلور کېدلو کي کوم حرج نسته، ځکه لکه څه ډول چي نورو منطقینو د کلي خارجي دوه قسمونه شمیرلي دي. دغه ډول ده څلور شمیرلي دي. لهذا په دغه کي پرته د قوم د مخالفت راتللو بل څه نه لازمیږي.لهذا ده دلته د قوم مخالفت کړي دی لکه څرنګه چي ده د قوم مخالفت په تقسیم کي د لفظ و طرف ته د کلي او جزئي کړي وو. لهذا هر یوه ته خپل تګ لاره خوښه وی.

"ان یختص بحقیقة واحدة" **سوال:** دلته مراد د حقیقت څخه کوم حقیقت دی؟

**جواب:** حقیقت نوعي، لهذا خاصه هغه کلي عرضي ده کومه چي د افرادو سره د حقیقتِ نوعي خاص وی.

**تبصره:** د حقیقتِ څخه حقیقت نوعي اخیستل دغه خبره د ضعف څخه ډکه ده، ځکه منطقینو د خاصه وېش و دو قسمونو ته کړی دي.۱: خاصة النوع. ۲: خاصة الجنس. لهذا خاصة النوع د یوه حقیقت پر افردو حمل کیږي. او خاصة الجنس پر افرادو د مختلفو حقیقتونو حمل کیږي. لهذا د حقیقت څخه مطلق مراد دی عام تر دې حقیقت نوعي او که جنسي وی.

مثال الخاصة من العرض اللازم : **خاصه لازمه:** هر هغه خاصه چي و ټولو افردو ته د ماهیت عارضه وی.لکه ضاحک بالقوه لپاره د انسان.اوس د انسان هر فرد بالقوه خندا کونکي وی.

**خاصه مفارقه:** هر هغه خاصه چي و ټولو افرادو ته د یو ماهیت شامله نه وی.لکه بالفعل د انسان خندا کول. اوس ټوله افراد د انسان بالفعل خندا کونکي نه وي.ځکه د دوی څخه بعض خاموش او بعض د دوی څخه ژړا کونکي وي.

"علي ما تحت حقائق مختلفة" **سوال:** په تعریف کي د عرض عام لفظ د "حقائق" صحت نه لري، ځکه "حقائق" د "حقیقة" جمع ده. او د جمعي اطلاق پر درو او یا پر زیات تر درو کیږي. نو معني د عبارت دا ګرزي: عرض عام هغه کلي خارجي دی چي پر افرادو د درو حقائقو حمل کیږي، نه پر افرادو د دو حقائقو. او حال دا چي عرض عام پر افرادو د دوو حقائقو هم حمل کیږي. لکه "الانسان و الفرس ماشیان"؟

**جواب:** دلته د جمعِ څخه لغوي مراد ده نه اصطلاحي. او د جمعِ لغوي اطلاق پر زیات د یوه کیږي، بیا عام تر دي د وه او که زیات تر دوو وي. او دغه د منطق په ټولو تعریفونو کي معتبره خبره ده، البته که چیري قرینه د جمعِ اصطلاحي پر مرادولو باندي وجود و لري، نو بیا هلته هم هغه جمعِ اصطلاحي مراده ګرزي.

## عبارت

اَلْقَوْلُ اَشَارِحُ: الحَدُّ :قَوْلٌ دَالٌّ عَلَى مَاهِيَّةِ الشَّيْءِ .وَهُوَ الَّذِي يَتَرَكَّبُ مِنْ جِنْسِ الشَّيْءِ وَفَصْلِهِ الْقَرِيبَيْنَ .كَالحَيَوانِ النَّاطِقِ بِالنِّسْبَةِ إِلَى الْإِنْسَانِ.وَهُوَ الحَدُّ التَّامُّ.

## ترجمه

د قول شارح بيان. حد هغه قول دی کوم چي ديو شي پر حقيقت او ماهيت باندی دلالت کوی. او دغه ديو شي د جنس قريب او فصلِ قريب څخه مرکبيږی. لکه د انسان په تعريف کي حيوان ناطق ويل.

## تشريح

**قول شارح:** هغه معلوم د تصوراتو څخه چي د هغه په توسط مجهولي تصوری حاصليږی. دغه ته قول شارح، معرِف هم ويل کيږی.

**د تسميه دوجي بيان:** قولِ شارح يو لفظ مرکب د قول او د شارح څخه دی. "قول" لکه څرنګه و مرکب ته ويل کيږي دغه ډول تعريف هم اکثره مرکب وی.او لفظ د "شارح" څرنګه د شرحي څخه دی. شرح و وضاحت او شارح ووضاحت کونکي ته ويل کيږي دغه ډول په هغه معلومي تصوري چي د هغه په توسط سره مجهول معلوميږي هم د شي حقيقت واضح ګرزي.

**حد:** "حد" په لغت کي و منعي ته ويل کيږي .او هغه تعريف چي په ذاتياتو باندي د شي مشتمله وي هغه هم د معرف "په فتحه سره" ټوله اغيار د داخليدو څخه منع کوي په دغه وجه سره ده ته حد ويل کيږي.

**حدتام:** هرهغه حدچي پر جنسِ قريب اوفصلِ قريب باندي د يو شي مشتمل وی. لکه د انسان تعريف په حيوان ناطق سره وسي. نو د انسان جنسِ قريب حيوان او فصلِ قريب يې ناطق دی. نو دغه تعريف د جنسِ قريب او فصلِ قريب څخه د انسان مرکب دی.

## خلاصه حواشي ايوبي

د منطقينو د اصطلاحاتو څخه يو قولِ شارح دی. او قول شارح و تعريف ته ويل کيږی. او دغه عام و حد او رسم دواړو ته دی. ځکه تعريف د شي به يا په ذاتياتو او يا به په عرضياتو سره

وی. که چیری په ذاتیاتو سره وی نو دغه ته حد ویل کیږی. او که په عرضیاتو سره وی نو هغه ته رسم ویل کیږی.

**سوال:** "قول شارح" څه ترکیبي حیثیت لری؟

**جواب:** دغه په اعتبار د معني پر تیر سوی عبارت باندی عطف دی، او هغه تیر سوی عبارت "منها ایساغوجي" دی، نو تقدیر د عبارت دا ګرزی "منها ایساغوجي و منها القول الشارح". قول په لغت کي مرکب او شارح په لغت کي واضح کونکي ته ویل کیږی.

**قال السید:** دلته شارح د مصنف د راتلونکي عبارت د مخکني عبارت سره د ربط بیان کوي. خلاصه د دغه داده: مقصد د منطقي د هغه شي حاصلول وی چي هغه مجهول او نامعلومه وی اوس به دغه نامعلوم او مجهول شي د تصوراتو د قبیلې څخه وی، او یا به د تصدیقاتو د قبیلې څخه وی. او هغه شي چي د هغه په توسط سره و دغه نا معلوم شي ته رسیدل راځي هغه ته قول شارح ویل کیږي. او دغه قول شارح په پنځو کلیاتو باندي موقوف دی. لهذا مخکني کلام په بیان د موقوف علیه او راتلونکي کلام په بیان باندي د موقوف مشتمل دی. د دغه وجي مصنف د موقوف علیه د بیان څخه د فارغ والي ورسته شروع په بیان سره د موقوف و کړلهٔ او ویویل: القول الشارح.

**سوال:** د سید سند رحمه الله د دغه قول څخه "الغرض من المنطق" مقصد څه دی؟

**جواب:** مقصد د دې قول څخه جواب ورکول د یو مقدر سوال څخه دی، تقریر د سوال دا دی چي څه وخت چي مصنف رحمه الله د بیان څخه د پنځو کلیاتو فارغه سو نو بیا ده ولي تر دغه ورسته بیان د قول شارح راوړي، د دې څه وجه ده، نو سید رحمه الله جواب ورته ورکړي چي د علم المنطق اصلي مقصد د قول شارح او حجت څخه سیوا حاصلیدلای نسي. نو څرنګه دی موقوف علیه د پاره د مقصود وو په دې وجه مصنف رحمه الله دغه بحث ورسته تر بحث د پنځو کلیاتو راوړي.

**سوال:** مصنف رحمه الله د قول شارح بحث ورسته تر بحث د پنځو کلیاتو ولي راوړي، د دې څه وجه ده؟

جواب: کلیات ماده، او اصل لپاره د قول شارح دي، ځکه قول شارح مرکب ددغه کلیاتو څخه وی. نو کلیات ماده لپاره د قول شارح دي. نو کلیات اصل سوه په دغه وجه دوی مخکي کړل سول. دغه داسي دی لکه مصنف رحمه الله د قضایاؤ بحث مخکي تر بحث د حجت راوړی دي. ځکه قضایا ماده او اصل لپاره د حجت دي.

**اقول التعریفات:** که چیری تعریف د یوشي په ټولو ذاتیاتو سره د هغه شي وی نو دغه ته حد تام ویل کیږی. لکه د انسان تعریف په حیوان ناطق سره کول. اوس دغه ته حد په دې وجه ویل کیږي چي حد په لغت کي منع کولو ته ویل کیږي دغه ډول دغه حد تام هم په ذاتیاتو باندي د شي د مشتملوالي د وجي مانع داغیارو څخه ددغه معرَف وی. او دغه ته تام په دې وجه ویل کیږي چي دغه حد په ټولو ذاتیاتو باندي د شي مشتمل وی.

او که چیری په بعضو ذاتیاتو سره دشي وی نو هغه ته بیا حد ناقص ویل کیږی. لکه د انسان تعریف په جسم ناطق سره کول. نو اوس دلته جسم جنس بعید لپاره د انسان او ناطق فصل قریب لپاره د انسان دی. اوس دغه ته حد په دې وجه ویل کیږي چي دغه پر فصلِ قریب د شي مشتمله وی. او ناقص په دې وجه ورته ویل کیږي چي په دغه حد کي کموالي د حد تام د اجزاؤ وی. او هغه جنس قریب دی.

**قوله علي ماهیة الشيء** " حد دلالت پر ماهیت د شي کوی. په دغه قید سره رسم ووتي، ځکه رسم پر ماهیت د شي دلالت نه کوی بلکه پر عرضیاتو د شي دلالت کوی.

**سوال:** لفظ د "حد" تعریف کول صحت نه لری، ځکه دغه "حد" په حیث د حد سره وتعریف او و یو بل حد ته ضرورت لری. نو دغه ډول "حد الحد" هم و حد ته محتاجه دی. ځکه دغه حد هم په وصف سره د حد والي موصوفه دی. داډول تر آخره پوري. نو تسلسل لازم سو. او تسلسل باطل دی. نو د حد تعریف کول هم باطل دی؟

**جواب:** د "حد" تعریف کول صحت لری. او "حد الحد" و بل حد ته محتاجه نه دی. ځکه عقل "حد الحد" په اعتبار د ذات معتبروی نه په حیث سره د اضافت. او په دغه حیث سره "حد" مساوي د معرَف سره دی. او دی وبل حد ته محتاجه نه دی. او که چیري دی په حیث د اضافت معتبره

سي نو بيا هم تسلسل نه راځي: ځکه عقل "حد الحد" همېشه په دغه حيث سره نه معتبر وي. نو عقل دغه تسلسل په قطع کولو سره داعتبار "دحد الحد په حيثيت سره د حدوالي" قطع کړي.

**اعلم ان ماهية الإنسان**" ماهيت د انسان مرکب د "حيوان" او "ناطق" څخه دی. او حيوان عبارت د "جسم نامي حساس متحرک بالارادة" څخه دی يعني نما کونکي جسم، حس لرونکي او په اراده سره حرکت کونکي دی. او جسم عبارت د جوهر څخه دی کوم چي اهليت د ابعادو ثلثه وو لری. او دغه ابعاد عبارت د اوږدوالي، پلنوالي، او جوروالي څخه دی. "الجوهر القابل الخ" د ذاتياتو څخه د جسم دی. او دا قول "نما کونکي حس لرونکي او په اراده سره حرکت کونکي" دغه ذاتيات د حيوان دی. او حيوان ذاتي لپاره د انسان دی. نو دغه معناګاني ټولې ذاتيات لپاره د انسان دي. حيوان جنس قريب لپاره د انسان دی، جسم نامي جنس بعيد لپاره د انسان دی. جسم مطلق جنس ابعد لپاره د إنسان دی. او جوهر جنس ابعد الابعد لپاره د انسان دی. ناطق انسان د هغه شيانو څخه جلا کوی کوم چي د انسان سره په جنس قريب کي شريکان دي. او دغه ناطق فصل قريب لپاره د انسان دی. او حساس انسان د هغه شيانو څخه جلا کوی کوم چي په جنس بعيد يعني جسم نامي کي شريک دي. نو حساس فصل بعيد لپاره د انسان دی. او نامي انسان د هغه شيانو څخه جلا کوی کوم چي د انسان سره په جنس ابعد يعني جسم مطلق کي شريک دی، دغه ته فصل الابعد ويل کيږی. او قابل الابعاد انسان د هغه شيانو څخه جلا کوی کوم چي دده سره په جنس ابعد الابعد کي شريک وي. چي هغه جوهر دی. نو دغه فصل ابعد الابعد لپاره د انسان دی.

**سوال:** هغه تعريف چي دلالت پر ماهيت د شي کوی هغه ته حد ويل صحت نه لری، ځکه حد مصدر دی، او مصدر وصف وی. او تعريف چي مانع د اغيارو څخه وی هغه ذات سره د وصفه وی يعني مانع (منعه کونکي)، نه وصف چي منع ده، لهذا د حد اطلاق پر معرِف يعني مانع (ذات سره د وصف) باندی صحت نه لری؟

**اول جواب:** دغه حمل د وصف پر ذات باندی دپاره د مبالغه دی. او ددغه استعمال زيات دی، لکه پر زيد باندی په دې مثال کي "زيد عدل" سوی دی، لهذا معرِف د ډېر منعه کولو په وجه ګواکي دی پخپله منعه ده، نو پر ده باندی د منع اطلاق و سو.

**دوم جواب:** بعضو بیا ویلي د چي حد مصدر  نه بلکه اسم فاعل دی، په اصل کي "حادِد" وو، بیا د اول دال حرکت ساقطه سو او په دوم کي ادغام کړل سو، نو "حادّا" و گرزېدی، بیا په دې کي په حذف سره د الف تخفیف تر سره سو، نو "حد" وگرزېدی.

**سوال:** تعریف د حدِ تام صحی نه دی، ځکه ضمیر د "هو" و مطلقِ حد ته راجع دی، ځکه هر ضمیر لره مرجع پکار وی، او مخکي ذکر مطلق حد دی، نه حدِ تام، نو ضمیر د "هو" هم دغه مطلق حد ته راجع دی، نو معرَف (د چا چي تعریف کیږي) مطلق حد دی، او تعریف بیا دَ مطلق حد نه دی، ځکه مطلق حد و حدِ ناقص ته شامله دی، مګر دغه تعریف محض و حدِ تام ته شامله دی نه و ناقص ته، نو معلومه سوه چي دغه د مطلق حد تعریف نه دی، بلکه د حدِ تام تعریف دی، لهذا د معرَف او معرِف تر مینځ تطبیق نه راغلي؟

**اول جواب:** عبارت د مصنف رحمه الله د لیکونکو پر خطا محموله دی، اصل عبارت داډول دی "هو اما یترکب "یعني دغه حد مطلق به یّا مرکب د جنس قریب الخ څخه وی، ،لهذا اصل "اما" وو مګر لیکونکي دغه "ما" و لیکي او همزه یې و نه لیکل. نو اوس سوال دفعه سو، ځکه ضمیر راجع و مطلق حد ته دی، مګر تعریف دده نه بلکه دده د یو قسم چي حدی تام دی د هغه دی، نو د معرَف او معرِف تر مینځ موافقت راغلي.

**دوم جواب:** عبارت د مصنف حمل پر تقدیر د مبتدأ او خبر دی، اصل عبارت داډول دی "هو (مبتدا) قسمان (خبر)احدهما الذی الخ" . یعني حد دوه قسمه لری، اولني قسم دادی چي مرکب د جنس قریب او فصلِ قریب څخه وی. نو اوس سوال دفعه سو، او دغه جواب تر هغه مخکني غوره دی، ځکه د هغه مطابق د حد ناقص په تعریف کي هم بدلېدل کول پکار دی، داډول " هو اما یترکب عن جنس الشيء و فصله القریبین کالحیوان الناطق بالنسبة الي الانسان و هو حد التام ، و اما یترکب من جنسه البعید و فصله القریب کالجسم الناطق بالنسبة الي الانسان و هو الحد الناقص". څرنګه دغه جواب پر ډیرو تقدیراتو مشتمله دی په دې وجه دی کمزوری تر دوم جواب و ګرزول سو.

## عبارت

وَالحَدُّ النَّاقِصُ :وَهُوَ الَّذِي يَتَرَكَّبُ مِنْ جِنسِ الشَّيْءِ الْبَعِيدِ وَفَصْلِهِ الْقَرِيبِ .كَالْجِسْمِ النَّاطِقِ بِالنِّسْبَةِ إِلَى الْإِنْسَانِ . وَالرَّسْمُ التَّامُّ وَهُوَ: الَّذِي يَتَرَكَّبُ مِنْ جِنسِ الشَّيْءِ الْقَرِيبِ وَخَوَاصِّهِ اللَّازِمَةِ لَهُ كَالحَيَوانِ الضَّاحِكِ فِي تَعْرِيْفِ الْإِنسَانِ.

## ترجمه

او حدِ ناقص دی، او دغه مرکب د یو شي د بعید جنس او د قریب فصل څخه وی. لکه جسم ناطق په تعریف کي د انسان . او رسم تام دی، دغه مرکب د شي د جنسِ قریب او د هغه د خاصه لازمه څخه وی، لکه حیوان ضاحک په تعریف کي د انسان.

## تشریح

**حدِ ناقص:** هر هغه حد چي پر جنسِ بعید او پر فصل قریب باندي د یو شي مشتمله وی. لکه د انسان تعریف په جسم ناطق سره کول. جسم جنس بعید لپاره د انسان دی، او ناطق فصل قریب لپاره د انسان دی.

**د تسمیه دوجي بیان:** حد ناقص ته حد د مخکني وجي په خاطر ویل کیږي.او ناقص په دې وجه ورته ویل کیږي چي په دغه حد کي کموالي د حد تام د اجزاؤ وی. او هغه جنس قریب دی.

**رسم تام:** هر هغه رسم چي مرکب د جنس قریب او د خاصه لازمه څخه د یو شي وی.

**مثال:** د انسان تعریف په حیوان ضاحک سره کول. حیوان جنسِ قریب او ضاحک خاصه د انسان لپاره ده. نو دغه رسم مرکب د جنسِ قریب او خاصه لازمه څخه د انسان دی.

**د تسمیې دوجي بیان:** دغه ته رسم په دې وجه ویل کیږی چي رسم په لغت کي علامت او اثر ته د کور ویل کیږي .څرنګه چي رسم په خاصه سره د شي وی، او خاصه اثر د شي وی.او تعریف په اثر سره د شي کولو ته رسم ویل کیږي ددغه وجي دغه ته هم رسم ویل کیږي.او دغه تعریف ته تام په دې وجه ویل کیږي چي دی د حدِ تام سره په دې کي مشابهت لری چي څرنګه

حد تام په جنس قریب او په یوه داسي شي باندي مشتمله وی چي هغه د معرَف سره خاص وي چي هغه فصل قریب دی. دغه ډول رسم تام هم مشتمله پر جنس قریب او پر هغه څه باندي وی چي هغه خاص د معرَف سره وی چي هغه خاصه ده.

څه وخت چي مصنف رحمه الله د بیان څخه د اول قسم د حد فارغه سو نو اوس ده د حد د دوم قسم بیان شروع کړی او هغه حدِ ناقص دی.

**سوال:** تعریف په مفرد سره جائز دی، او که نه؟

**جواب:** په دغه کي اختلاف ترسره سوی دی.

۱: **مشهور منطقین** فرمایي چي جائزه دي. لهذا د انسان تعریف محض په ناطق سره کول دغه حدِ ناقص دی. او په ضاحک سره کول رسم ناقص دی. او دغه هم مشهوره مذهب دی.

۲: **یو ټولۍ د محقیقنو** فرمایي چي تعریف په مفرد سره روا اینښت نه لری.

**مختار مذهب:** د مصنف رحمه الله په نزد دوم مذهب معتبر دی په دغه وجه ده په تعریف کي د حدِ ناقص قید د ترکیب اضافه کړي.

**قولهٔ والرسم:** رسم په لغت کي اثر ته د یو شي ویل کیږی. ځکه رسم ددې قول څخه د عربو "رسم الدار" اخیستل سوی دی یعني اثر او علامت د کور. او په اصطلاح کي هغه مرکب دی چي دلالت پر هغه لازم کوی چي هغه مساوی د معرَف سره وی.

**د تسمیې وجه:** دغه تعریف ته په دې وجه رسم ویل کیږی چي رسم په لغت کي و اثر ته ویل کیږی دغه ډول تعریف په هغه خارجي شي سره چي لازم د معرَف سره وی هم یو اثر د اثارو څخه د دغه معرَف وی.

**قوله والرسم:** رسم هم دوه قسمونه لري. ۱: تام، ۲: ناقص. ځکه که چیری په تعریف کي جنس قریب سره د هغه شي ذکر وی چي هغه دغه جنس ددغه معرَف سره خاصه وی نو دغه ته رسم تام ویل کیږی. رسم په دې وجه ورته ویل کیږی چي دغه تعریف پر لازم او اثر د شي مشتمله وی، او تام په دې وجه ورته ویل کیږی چي دغه مشابهت د حدِ تام سره لری، چي په دواړو کي جنس قریب او تخصیص کونکي موجوده وی، په دغه وجه ده ته تام ویل کیږی. او که چیری

رسم دغه ډول نه وو نو دغه ته بيا رسم ناقص ويل کيږي. ځکه په دې کي کمي تر رسم تام واقع وي داډول چي په هغه کي جنس قريب ذکر وي او په ده کي ذکر نه وي.

يرد عليه ان المثال: **سوال:** مثال د ممثل موافق نه دی، ځکه حد ناقص کي جنس بعيد ذکر وي، او په مثال کي جنسِ بعيد ذکر نه دی بلکه جنسِ ابعد ذکر دی داډول چي د انسان جنسِ بعيد جسم نامي دی او جنس ابعد مطلق جسم دی، نو دلته په مثال کي جسم ذکر دی نه جسم نامي؟

**جواب:** دلته مراد د بعيد څخه بعيد اصطلاحي د منطقينو په وړاندی نه دی بلکه بعيد د قريب مقابل واقع سوی دی او مراد دادی چي قريب نه وی بيا عام تردې بعيد ، ابعد او که ابعد الابعد وی، لکه په تعريف کي د انسان ويل کيږي: "الانسان جسم نام ناطق". او داډول هم ويل کيږي " الانسان جسم ناطق".

فافهم: **سوال:** تعريف د انسان په جسم ناطق سره صحت نه لري، ځکه تعريف مانع او جامع وی، او دغه تعريف مانع نه دی، ځکه دغه پر مَينا او طوطي باندی صادقه راځي ،ځکه هغوی هم جسم ناطق دی، او جامع خپلو افرادو ته هم نه دی، ځکه ګونګي انسان ووتي، ځکه هغه جسم ناطق نه دی، خبری نسي کولای؟

**جواب:** مراد د ناطق څخه خبری کونکي نه دی ، بلکه ادراک کونکي د کلياتُ مراد دی، نو اوس مينا او طوطي ووتل ځکه دوی ادراک د کلياتو نسي کولای، او ګونګي داخل سو ځکه هغه ادراک د کلياتو کولای سي.

## عبارت

وَالرَّسْمُ النَّاقِصُ وَهُوَ الَّذِي يَتَرَكَّبُ مِنْ عَرَضِيَّاتٍ تَخْتَصُّ جُمْلَتُهَا بِحَقِيقَةٍ وَاحِدَةٍ .كَقَوْلِنَا فِي تَعْرِيفِ الْإِنْسَانِ إِنَّهُ مَاشٍ عَلَى قَدَمَيْهِ، عَرِيضُ الْأَظْفَارِ، بَادِي الْبَشَرَةِ، مُسْتَقِيمُ الْقَامَةِ، ضَحَّاكٌ بِالطَّبْعِ.

## ترجمه

او رسم ناقص دی، او دغه مرکب د هغهٍ عرضیاتو څخه وی د کومو مجموعه خاص تر یوه حقیقته پوری وی. لکه زموږ د انسان د تعریف په هکله دا ډول وینا انسان پر پښو تګ کونکي دی، پلن نوکان یې دي، صفا پوستوکي والا، سیدا قد والا دی، او په طبعي اعتبار سره خندونکي دی.

## تشریح

**رسم ناقص:** هرهغه تعریف چي په داسي عوارضو سره وسي د کومو مجموعه خاص تر دغه معرَف پوری وي. دغه ته رسم ناقص ویل کیږي. لکه د انسان تعریف په "ماشی علی قدمیه" (چي په پښو تلونکي)،عریض الاظفار( پلن نوکي) بادی البشرة (سپین پوستی) مستقیم الاقامة ( سیدها قدلرونکي) ضحاک بالطبع ( په اعتبار د طبعیت خندا کونکي).او س ددغه ټولو مجموعه د انسان پوري خاص ده.

**د تسمیې د وجي بیان:** دغه ته رسم د تیري سوي وجي په وجه ویل کیږي.او دغه ته ناقص په دې وجه ویل کیږي چي په ده کي کمي د بعضو اجزاؤ د رسم تام وي چي هغه جنس قریب دی.

## خلاصه حواشي ایوبي

**جملتها:** ددغه ټولو مجموعه تر انسانه پوری خاص وی، که څه هم ددوی څخه هر یو تر انسان عام و نورو ته هم شامله وی. لکه "ماشي"، دغه خاص تر انسانَ پوری نه دی بلکه و نورو ته هم شامله دی. و ډیرو نورو شیانو ته شامله دی. مګر ددغه ټولو مجموعه تر انسانَ پوری خاص ده، بل هیچا ته شامله نه ده.

**الرسم العلامة** : رسم و علامه ته ویل کیږی. او په علامه سره دشي پیژندنه د شي راځي. دمثال په توګه ضاحک چي بالنسبت و انسان ته واخیستل سي، او دبوال بالنسبة و کور ته

واخيستل سي، ضاحک دلالت پر خندا کونکي کس کوی، او دېوال پر کور دلالت کوی. په دغه وجه سره رسم منطقي يې په رسم لغوی سره مسمي کړی.

**اقول اختصاص المجموع:** کله د يو شيانو داسي مجموعه وی چي مجموعه هم تر يو شي پوری خاص وی، او هر يو د دغه مجموعې د افرادو څخه هم تر دغه شي پوری خاص وی. لکه مجموعه د ضاحک، کاتب او متعجب (تعجب کونکي)، اوس ددې ټولو مجموعه تر انسانَ پوری خاص ده، او دغه ډول هر يو ددوی څخه هم تر انسانَ پوری خاص دی. او کله کله مجموعه په حيث د مجموع تر يوه شي پوری خاص وی، مگر هر يو ددغه افرادو څخه ددغه مجموعې تر هغه شي پوری خاص نه وی، لکه د چوپړک په تعريف کي داسي وويل سي "طائر ولود" زيږېدونکي مرغه يعني چوپړک، اوس مجموعه ددغه دواړو تر چوپړکه پوری خاص ده بل چا ته شامله نه ده، مگر نه طائر خاص تر چوپړکه پوری دی، ځکه طائر مرغه ته ويل کيږی، او مرغان ډير دی، او دغه ډول ولود و اولاد ورکولو ته ويل کيږی، او اولاد ورکونکي ډير دی لکه پوسه او نور. مگر ددوی دواړو مجموعه تر چوپړکه پوری خاص ده. او کله داډول هم وی چي مجموعه په حيث د مجموع هم تر يوه شي پوری خاص وی، خو ددغه مجموعې د افرادو څخه بعض تر دغه شي پوری خاص وی، او بعضې بيا خاص نه وی. ددغه مجموع د افرادو څخه بعضې چي خاص تر شي پوری وی ددې راوړل په دغه مجموعه کي کومه د توجه وړ خبره نه ده.

**قوله ما يتركب: سوال:** تعريف د رسم ناقص صحت نه لری، ځکه هر تعريف و خپلو افرادو ته جامع وی او دغه تعريف جامع نه دی، ځکه که د يو شي تعريف په جنس بعيد او خاصه سره وسي نو دغه هم رسم ناقص دی، مگر دغه تعريف جوړ د عرضياتو څخه نه دی، بلکه د ذاتياتو (جنس بعيد) او عرضياتو (خاصه) څخه مرکب دی، نو دغه تعريف دا ويل کېدای نسي چي دغه مرکب د عرضياتو څخه دی، لهذا دغه رسم ناقص مگر تعريف نه پرې صادق قيږی؟

**اول جواب:** دلته مصنف رحمه الله داسي تعريف کړی نه دي چي هغه و ټولو افرادو ته د رسم ناقص شامله وی، او نه دده دغه مقصد دی، بلکه ده د رسمِ ناقص غير مشهوره فرد بيان کړی

دي. او شهرت رسېدلي فرد حرنگه و شهرت ته رسېدلی وی او بیان ته ضرورت نه وی په دغه وجه ده هغه مشهور فرد بیان نه کړی.

**دوم جواب:** د جنسِ بعید او خاصه څخه جوړ سوی تعریف که څه هم د ذاتي او عرضي څخه جوړ سوی وی، مگر دلته د عرضي غلبه پر ذاتي ورکول سوېده. ددې بیان دادی چي دغه رسم ناقص د داخل او خارج څخه مرکب وی، بیا دغه خارج ته غلبه پر داخل ورکړل سوه، او دی يې تابع په نامه کي و گرزول سو. او پر ده باندی د عرضي اطلاق وسو، نو دغه تعریف د عرضیاتو د قبیلې څخه و گرزول سو.

فافهم: **سوال:** دلته د حیوان، او ضاحک څخه مرکب سوی تعریف د عرضیاتو د قبیلې څخه گرزول صحت نه لری، که څه هم پر طریقه تغلیب والي نه وی. ځکه عرضیات جمع د عرضي ده، او د جمعي اطلاق پر درو کیږی. او د جنس بعید او خاصه څخه مشترک تعریف په صورت کي د تغلیب پر طریقه باندی عرضیات دوه دي نه درې. نو بیا ما یترکب عرضیات صحت پیدا نه کړی؟

**جواب:** په علم المنطق کي جمع چي څه وخت ذکر سي هلته جمعه لغوی مراد وی نه اصطلا حي. او د جمعي لغوی اطلاق پر دوو کیږی نه پر دو، نو اوس کوم اشکال نه واردیږی.

قوله تختص: **سوال:** د انسان په تعریف کي "عریض الاظفار"، "الماشي" او "مستقیم الاقامة" راوړل صحت نه لری، ځکه یو ددوی څخه هم خاص تر انسانه پوری نه دی؟ ځکه ماشي و نورو افرادو ته د حیوان پرته د انسان هم شامله دی. او دغه ډول عریض الاظفار په خره کي هم وجود لری، او دغه ډول پاته نور قیود چي په تعریف کي د انسان ذکر سوی دي.

**جواب:** دلته د هر یوه تخصیص مقصود او مطلوب نه دی، بلکه مقصد دادی چي ددغه عرضیاتو مجموعه په حیث د افرادو نه بلکه په حیث د مجموعې خاص تر معرَف پوری وی. او دلته هم دغه ډول دئ چي ددغه ټولو مجموعه تر انسانه پوری خاص ده.

**مهمه فائده:** دلته څلور شیان بیان سوه .۱: حدِ تام. ۲: حدِ ناقص. ۳: رسمِ تام.۴: رسمِ ناقص. بیا ددوی څخه هر یو مفهوم او یوه معني لری چي هغه په صورت کي د تعریف راوړل کیږی، او هر یو مصداق (هغه شي چي پر هغه دوی صادقیږی) لری. د هر یوه مفهوم علماؤ بیان

کړي دي لکه اوس چي دلته د مصنف رحمه الله د طرفه څخه هم بیان سوه، مګر مصداق ددوی څوک دي. په دغه کي سخت اشکال او دغه یوه ستره د فهم وړ خبره ده، آیا حیوان ناطق حد تام او که حد ناقص، رسم تام او که رسم ناقص دی. او که څه بل یو. دغه محض هغه څوک پیژندلای سي کوم ته چي پاک او د تمیز وړ طاقت د الله جل جلاله د طرفه څخه ورکول سوی وي. په دغه وجه شیخ ابن سینا فرمایي: جنس او د عرض عام ترمینځ اشتباه وجود لری. او د فصل او خاصه تر مینځ.

**سوال:** د مصنف رحمه الله دغه راوړل سوی مثالونه صحت نه لری، ځکه تا پخپله و فرمایل چي شیخ صاحب فرمایي د جنس او عرض عام ترمینځ اشتباه وجود لری او د خاصه او فصل ترمینځ. نو اوس د حد تام مثال په حیوان ناطق سره او دغه ډول هغه نور مثالونه چي تعریف د اقسامو لپاره وړاندی کړي دي صحت نه لری. ځکه دا کېدای سي چي حیوان عرض عام وی لکه جنس کېدای سي، او ناطق خاصه وی لکه دی چي فصل کېدای سي. نو که چیری حیوان عرض او ناطق خاصه سي نو دغه رسم ناقص سو نه حد تام نو بیا دغه مثال د حدِ تام لپاره راوړل صحت نه لری؟

**اول جواب:** دغه فرضي مثالونه دي یعني موږ دا فرض کړی دي چي حیوان جنس او ناطق فصل دی. نو بیا دغه مثالونه ددوی دپاره وړاندي کړه.

**دوم جواب:** دغه اصطلاحي مثالونه دي داډول چي د منطقینو اصطلاح پر دې راغلېده چي حیوان جنس لپاره د انسان او ناطق فصل دده دپاره دی. نو خلاصه دا سوه چي دغه مثالونه خو یا فرضي او یا اصطلاحي دي، نه واقعي چي بیا اعتراض وارد سي چي د واقع په هکله خو تا ته معلومات نسته.

**﴿فائده﴾:** دلته دوه ډوله شیان دي. ۱: **واقعي شیان** : دا هغه شیان دي چي څوک یې معتبر کړي او که یې نه کړي دوی وجود لری.

۲: **اعتباری شیان:** که یو څوک دوی معتبر کړی نو بیا دوی وجود لری ، او که یې معتبر نه کړي نو بیا وجود نه لری. لهذا ددوی وجود موقوفه پر اعتبار د معتبرونکي دي. لهذا د اول قسم شیانو جنس فصل او عرض عام او دغه ډول دغه نور ددوی مصداق معلومول ډېر یو

مشکل کار دی، او پاته د اعتباري شیانو ددوی د جنس او د نورو معلومول ډېر آسانه کار دی، معتبرونکي چې کوم شي ددوی لپاره جنس معتبر کړی هغه ددوی دپاره جنس دي، او دغه ډول دغه نور.

**سوال:** مصنف رحمه الله ضحاک په قید سره د "بالطبع" ولې مقید کړي، ددې قید څه فائده ده؟

**جواب:** یوه خندا فطرتي وی، یعني د یو شي په طبعیت کې پرته وی. او دغه خندا پرته د انسان بل هیڅ یو شي هم نه لری. او یوه خندا هغه ده چې زده سي. نو اوس خنذا کونکې بیزو هم وی. مګر دغه خندا ددې طبعي نه وی بلکه مصنوعي او زده سوې وی. لهذا مصنف رحمه الله په "بالطبع" قید سره بیزو وایستل.

**سوال:** دا د څه څخه معلومیږی چې د بیزوګي خندا زده سوې خندا وی نه طبعي؟

**جواب:** طبعي خندا هغه ده چې یو د تعجب وړ شي ولیدل سي نو بیا خندا تر سره سي. لکه انسان چې د تعجب وړ شي وویني نو بیا دی و خاندی. په خلاف د بیزو دغه څومره چې هم د تعجب وړ خبره ووینې نو دا نه خاندی، بلکه د مالک په وینا سره خاندی. مالک ورته ووای چې د سپین سری ښځې خندا وکړه مثلاً نو بیا یو داسي فعل وکړی لکه خندا.

## عبارت

الْقَضِيَّةُ:قَوْلٌ يَصِحُّ أَنْ يُقَالَ لِقَائِلِهِ إِنَّهُ صَادِقٌ فِيهِ أَوْ كَاذِبٌ .وَهِيَ إِمَّا حَمْلِيَّةٌ:

## ترجمه

قضيه يو داسي قول دی چي د هغه ويونكي ته دا ويل كېدای سي چي ته په دغه وينا كي رښتيوني او يا دروغجن يې. او دغه به يا حمليه وی.

## تشريح

**د قضيه تعريف**:هرهغه مركب چي وويونكي ته ئې داډول وينا صحی وي چي ته رشتيا ګويې يا دروغ جن په دغه مركب كي ئې.او ددغه قضيه دوه قسمه دي.

۱: **قضيه ملفوظه** : هر هغه قضيه چي هغه مركب د الفاظو څخه وی.د مثال په توګه "زيد كاتب".زيد يو لفظ او كاتب بل لفظ دی.

۲:**قضيه معقوله**:هر هغه مفهوم عقلي چي مركب د محكوم عليه،به او دنسبت حكمي څخه وی"هر هغه نسبت چي دده اضافت و حكم ته كيږي.ځكه دغه حكم په ده باندي واردېږي"او **د حكم** (دغه ادراک ددې خبري دی چي دغه نسبت چي د هغه ادراک سوي او واقع ترمينځ د محكوم عليه او د به دی مطابق يا مطابق د هغه شي سره نه دی چي هغه په نفس الامر كي دی.او دغه حكم په تصديق سره په نيز د امام **مسمی** كيږی).

**جمله حمليه**:هر هغه قضيه چي طرفين ددې بالفعل يا بالقوه مفرد وي.او ددې څو صورتونه دي.

۱: هر هغه قضيه چي ددې د طرفو څخه يو طرف هم دلالت په نسبت نه كوي.اونه په نسبت مشتمله وی . د مثال په توګه "زيد قائم".

۲:هر هغه قضيه چي د هغې يو طرف په نسبت باندي دلالت كوي د مثال په توګه "زيد ابوه قائم".

۳: هر هغه قضيه چي ددې دواړه طرفونه دلالت په نسبت اجمالا كوی(هر هغه مركب چي د هغه څخه تعبير په مفرد سره كول ممكن وی) د مثال په توګه "زيد عالم نقيضه زيد ليس بعالم".لهذا د دغه څخه داډول تعبير كول ممكن دی "هذه القضية نقيض تلک القضية".

خلاصه حواشي ايوبي

سوال: "القضايا" څه ترکيبي حيثيت لري؟
جواب: دغه مبتدأ خبر يې حذف سوی دی، اصل عبارت داډول دی " منها القضايا". او دغه ضمير د "ها" و "مما يجب استحضارها" ته راجع دی، نو خلاصه دا سوه چي بعض د هغه شيانو څخه چي د هغه حاضرول په ذهن کي عرفاً واجب دی د هغه څخه يو قضايا دي.
سوال: مصنف رحمه الله اولاً "القضايا" و فرمايل، مګر تعريف يې د "القضية" وکړی، ددې څه وجه ده؟
جواب: ددې وجه داده چي جمعه و تعريف ته محتاجه نه وی بلکه و تعريف ته مفرد محتاجه وی، ځکه جمعه هلته مبهمه ګرزی چي ددې افراد مبهم او مجهول وی، ځکه جمعه جوړه د افرادو څخه وی، د افرادو د تعريف او مجهوليت په حيث کوم حال وی هم هغه حال د جمعي وی، څرنګه و تعريف ته مفرد محتاجه وو، او دده په پيژندلو د جمعي پيژندنه راځي په دې وجه مصنف رحمه الله د مفرد تعريف وکړی نه د جمع. بلکه علماء فرمايلي دي چي تعريف دپاره د ماهيت په ماهيت سره وی نه د جمع او د افرادو ، ځکه د يو ماهيت د هر هر فرد پيژندنه د انسان د وس څخه وتلې خبره ده ، او د جمع په ضمن کي افراد وجود لري. نو د افرادو تعر يف کېدای نسي، نو په چا کي چي دغه افراد موجوده وی د هغه هم تعريف کېدای نسي.
سوال: دا خبره د محشي چي اضمار قبل الذکر نه لازميږی دغه خبره صحت نه لري، ځکه دلته ضمير نسته چي بيا اضمار قبل الذکر خبره مينځ ته راسي؟
جواب: دغه خبره بناء بر هغه نسخه ده چي په هغه کي د "القضية" پر ځای ضمير "هي" ذکر سوی دی. او بناء بر موجوده نسخه نه ده . نو د موجوده نسخې موافق دغه خبره هيڅ شد ، او وجود نه لري، او نه يې ضرورت سته.
سوال: که چيری دلته ضمير د "هي" پر ځای د "القضية" راسي نو بيا کوم څه اعتراض وارديږی؟
جواب: هغه سوال دادی چي دلته د ضمير راوړنه صحت نه لري، ځکه ضمير هلته راوړل کيږی چيری چي مخکي تر ده کوم داسي شي ذکر وی چي هغه ته دغه ضمير راجع و ګرزول سي. او ماقبل کي کوم داسي شي نسته چي هغه ته دغه ضمير د "هي" راجع و ګرزی؟

**جواب:** دلته مرجع مخکي ضمناً ذکر ده، ځکه مخکي "القضايا" ذکر سوی دی. او "القضايا" جمع په ضمن کي خپل افراد لري، چي هغه قضيه ده. لهذا دلته مرجع مخکي ضمناً ذکر ده. او هم دغه د ضمير د راوړلو د صحت دپاره کفايت کوی.

**سوال:** قضيه په لغت کي څه ته وايل کيږی؟

**جواب:** واقعي او نفس الامری حکم بيانول، او په اصطلاح کي هغه څه ته ويل کيږی کوم چي مصنف رحمه الله ذکر کړي.

**قول يصح:** هر تعريف پر جنس او فصل باندی مشتمله وی، اوس په تعريف کي د قضيه جنس او فصل څوک دي؟

**جواب:** "قول" جنس شامله و مرکب تام او غير تامه ټولو مرکباتو ته دی. او دا قول "يصح ان يقال" په دغه سره اقوالِ ناقصه (مرکباتِ ناقصه) ووتل، او ده اُودَه کس وينا هم ووتل، ځکه هغه ته دا نه سي ويلای چي ته رښتيوني يا دروغجن يې. مرکب اضافي او نور ټول اقسام د مرکب ووتل، ځکه د يوه ويونکي ته هم دا وېل کېدای نسي چي ته رښتيونکي يا دروغجن يې.

"المراد بقوله ان يقال: **سوال:** تعريف د قضيه صحی نه دی، ځکه دغه جامع و خپلو افرادو ته نه دی، ځکه "يصح ان يقال " څخه دا معلوميږی چي قضيه هغه ده چي ويونکي ته يې في الحال رښتيونکي يا دروغجن ويلای سي. او حال دا چي يو کس ووايي "زيد قائم" يعني زيد ولاړ دی، اوس تاته في الحال دا معلومه نه ده چي رښتيا زيد ولاړ او که نه دی، نو ته في الحال دغه کس ته رښتيوني يا دروغجن ويلای نسې، لهذا دغه قضيه ده مګر في الحال د دغه ويونکي موصوف په رښتيا يا دروغ سره کېدای نسي؟

**جواب:** دلته د "ان يقال" څخه في الحال موصوفيت مراد نه دی، بلکه دغه عام دی في الحال ورته رښتيونکي يا دروغجن ويلای سي، او که داسي قول وی چي ددې ويونکي ته رښتيوني يا دروغجن وېل ممکن وی. نو اوس ذکر سوی قول و نه وتي، ځکه د دغه قول ويونکي ته رښتيونکي يا دروغجن ويل ممکن دی.

**سوال:** دغه تعميم "ان يقال بالفعل او بالقوة" ددې لپاره تر سره سوی دی چي تعريف د قضيه شامله و بدهي قضايا و ته وګرزي، ځکه که چيری دغه تعميم تر سره نسي، نو بيا دغه تعريف

و بدهي قضاياؤ ته شامله کېدای نسي، ځکه ددوی و ویونکو ته في الحال رښتیوني یا درغجن ویل کېدای نسي.د مثال په توګه یو کس وwایي " السماء فوقنا" یعني آسمان تر موږ لوړ دی، اوس دغه خبر رښتیا دی، او په دې کي د درواغو هیڅ یو احتمال نسته، او څه وخت چي د قول څخه عام واخیستل سو نو اوس دغه ته هم تعریف د قضیة شامله سو، ځکه د بدهي قضایاو ویونکي ته د کذب نسبت نسي کېدای مګر په دغه کي احتمال د رښتیاوالي او دروغجنوالي ددواړو سته، ځکه دغه یوه قضیه ده ، په دې کي محمول و موضوع ته ثابته ګرزول سي. نو دا کېداې سي چي دغه نسبت ثابته وی او دا هم کېدای سي چي ثابته دي نه وی. مګر صرف رښتیاوالي په وجه د خارج دی نه په اعتبار د مفهوم.

**بیان د رد د طرف څخه د محشي** : دغه قول محشي رد کړي او وېویل: بالفعل د یوې قضیه و ویونکي ته رښتیوني ویل او یا دروغجن ویل دغه د بداهت سره هیڅ کوم تضاد نه لری چي د بداهت په لفظ سره دوی د تعریف څخه د قضیه ووزی، چي بیا د شمول لپاره لفظ د "ان یقال" عام و ګرزول سي.

فتدبر: **سوال:** "ان یقال" و بالفعل او امکان دواړو ته شامله ګرزول په کار نه دی، دغه هغه وخت په کار وو که چیری د "یصح" لفظ په عبارت کي وجود نه لرلای، او حال چي اوس موجوده دی، او ددغه مطلب دادی چي بالفعل او که بالقوه وی، نو دغه تعمیم د "یصح" څخه فهمیږی، نو دغه تعمیم مستقلاً اخیستل دغه ته کوم ضرورت نسته.

**جواب:** دلته دوې نسخه د ایساغوجي وجود لری.

۱: په یوه کي لفظ د "یصح" وجود لری. ۲: په بله کي لفظ د "یصح" وجود نه لری، بلکه داډول دی" قول یقال لقائله الخ". او دغه تعمیم اخیستل په هغه صورت کي دی چي لفظ د "یصح" وجود نه لری. نو اوس کوم اعتراض نه واردیږی.

**انه صادق فیه:** "یصح" صفت لپاره د "قول" دی، په دغه سره د نیوني خبری ووتلې ، او دغه ډول د کوشني خبری او دغه ډول د اوده کس خبری.

**سوال:** علماؤ دغه خبری د نیوني، کوشني او دغه ډول ددغه نورو په تعریف کي د خبر داخل ګرزولي دی. خبر او قضیه یو شي دی نو یو داخل شي ایستل کومه معني نه لری، لهذا دغه

خبرى بايد د تعريف څخه د قضيه و نه ايستل سي. البته دا خبره کېداى سي چي ددوى خبرى په قصد او اراده سره وى خو بيا دغه قيد د قصد په تعريف کي د قضيه معتبر نه دى يعني قضيه هغه ده چي متکلم چي کومي خبرى کوى هغه په اراده او قصد سره وى، کوشني ، نيوني او اُودَه کس داډول نه دى، مګر دغه د قصد خبره بيا په تعريف کي د قضيه معتبره نه ده؟

**جواب:** علامه سيبويه او جمهورو نحويان فرمايي چي په کلام (قضيه) کي قصد معتبر دى ، لهذا بېله قصده خبره کولو ته کلام او قضيه نه ويل کيږى. نو مصنف هم ددغه موافق تللي دي. لهذا په ايستولو کي کوم حرج نسته.

تجري قاعدة : الأمور بمقاصدها في علم العربية أيضا فأول ما اعتبروا ذلك في الكلام فقال سيبويه : والجمهور باشتراط القصد فيه فلا يسمى كلاما ما نطق به النائم والساهي وما تحكيه الحيوانات المعلمة وخالف بعضهم فلتم يشترطه وسمى كذلك كلاما واختاره أبو حيان وفرع على ذلك من الفقه ما إذا حلف لا يكلمه فكتمه نائما بحيث يسمع فإنه يحنث وفي بعض روايات المبسوط : شرط أن يوقظه وعليه مشايخنا لأنه إذا لم ينتبه كان كما إذا ناداه من بعيد وهو حيث لا يسمع صوته كذا في الهداية. (الاشباه و النظائر لابن النجيم المصرى رحمه الله تعالي ١٨١ / ج١، الفن الاول في القواعد الكلية، النوع الاول، القاعدة الثانية : الامور بمقاصدها)

و قوله ان يقال: **سوال:** ددې قول څه مطلب دى؟

**جواب:** ددې مطلب دادى چي دا خبره ممکنه وى چي و متکلم ته کوم بل کس رښتيا يا دروغجن ووايي. لهذا بالفعل وينا معتبره نه ده بلکه امکان د وينا معتبر دى، که چيرى د يو قضيه ويونکي ته بالفعل رښتيوني يا دروغجن نسي ويلاى کېداى نو ددې څخه کوم اثر نه پرېوزى، بلکه امکان يې وى، لهذا امکان کافي دى، او بالفعل شرط نه دى.

قوله صادق" ددې قول څخه څه مراد دى؟

**جواب:** ددې څخه مراد دادى چي ويونکي د يو داسي کلام خبرورکونکي وى چي هغه د واقع سره مطابق وى. او يا د يو داسي کلام خبرورکونکي وى چي هغه د واقع سره موافق نه وى.

**سوال:** جمله څو قسمونه لرى؟

**جواب:** جمله دوه قسمونه لرى. ١: حمليه. ٢: شرطيه.

**سوال:** قضيه ولي په دغه دوه قسمونو کي حصر ده؟

**جواب:** ځکه په قضیه کي که چیری محکوم علیه او به دواړه بالفعل مفرد یا بالقوه وی نو دغه ته حملیه ویل کیږی او که چیری دغه دول نه وی نو هغه ته بیا شرطیه ویل کیږی.

**سوال:** تعریف د حملیه صحت نه لری، ځکه دغه تعریف جامع خپلو افرادو ته نه دی داډول چي "زید ابوه قائم" جمله حملیه ده، مگر ددې طرفین مفرد نه دی، محکوم علیه خو مفرد مگر محکوم به "ابوه قائم" بیا جمله اسمیه ده؟

**جواب:** مفرد عام دی حقیقتاً او که حکماً وی. مفرد حقیقتاً لکه "زید قائم". او مفرد حکمي هرهغه مرکب چي د هغه څخه تعبیر کونه په مفرد سره د ملاحظه د نوعیت د حکم [یعني که چېرې په معبرعنه کې حکم حملي وو نو په تعبیر کې به هم حکم حملي وي ]ممکن وی. نو اوس شرطیه په حملیه کې داخله نه سوه. ځکه طرفین د شرطیه مفردین بالقوه نه دي. ځکه تعبیر کونه د طرفینو څخه په شرطیه کې سره د ملاحظه د نوعیت د حکم شرطي په مفردین سره ممکن نه دي. ځکه په شرطیه کې حکم په اتصال یا په انفصال سره وي.

فتدبر: **سوال:** مفرد عام و حقیقي او حکمي ته اخیستل او ورسته تر هغه بیا اعتراض واردول چي "في تعریف الحملیة نظر" دغه هیڅ معني نه لری، ځکه دغه اعتراض د مفرد په تعمیم سره دفعه سو، نو د دفعي ورسته بیا واردېدل څرنګه راځي؟

**جواب:** دغه اعتراض واردېدل بناء بر اغماض دی، یعني ددغه تعمیم څخه سترګي پټي کړې او بیا یې دغه اعتراض وارد کړي، او بناء بر اغماض دغه کول صحت لری.

## عبارت

كَقَوْلِنَا زَيْدٌ كَاتِبٌ .وَإِمَّا شَرْطِيَّةٌ مُتَّصِلَةٌ :كَقَوْلِنَا إِنْ كَانَتِ الشَّمْسُ طَالِعَةً فَالنَّهَارُ مَوْجُودٌ .وَإِمَّا شَرْطِيَّةٌ مُنْفَصِلَةٌ. كَقَوْلِنَا: الْعَدَدُ إِمَّا أَنْ يَكُونَ زَوْجًا أَوْ فَرْدًا . وَالجُزْءُ الْأَوَّلُ مِنَ الحَمْلِيَّةِ يُسَمَّى مَوْضُوعًا .وَالثَّانِي مَحْمُولاً .وَالجُزْءُ الْأَوَّلُ مِنَ الشَّرْطِيَّةِ يُسَمَّى مُقَدَّمًا .وَالثَّانِي تَالِيًا .

## ترجمه

لکه زموږ دا قول "زید لیکوال دی". او یا به شرطیه متصله وی لکه زموږ دا قول " که چیری لمر راختلي وی نو ورځ به موجوده وی". او یا به شرطیه منفصله وی لکه زموږ دا قول " عدد به جفت او یا طاق وی . د حملیه اولني جزء ته موضوع او دوم ته يې محمول ویل کیږی. او اول جزء ته د شرطیه مقدم او دوم ته تالي ویل کیږی.

## تشریح

**شرطیه:** هر هغه قضیه چي طرفین ئې نه بالفعل او نه بالقوه مفرد وي. بلکه دواړه طرفونه ددې په نسبت باندي تفصیلاً (چي ددوي څخه په مفرد سره تعبیر ممکن نه وی) مشتمله وي .

**د شرطیه اقسام:** د شرطیه دوه قسمه دي.

**متصله:** هرهغه شرطیه چي په دې کي په صدق یا په عدمي صدق سره د یوې قضیه حکم په تقدیر د صدق یا د عدمي صدق د بلي قضیي سوي وي.

**مثال: موجبه:** ان کان هذا انسانا فهو حیوان. که چیري دغه انسان وي نو دی به حیوان وی.

**سالبه** : لیس ان کان هذا انسانا فهو جماد. که چیري دغه انسان وو نو دغه به جماد وی دغه ډول نه ده.

**منفصله:** هر قضیه چي په دې کي تنافي یا په عدمي تنافي سره ددو قضیو ترمینځ په اعتبار د صدق او کذب ددواړو حکم سوي وی.

**مثال: موجبه:** اما ان یکون هذا العدد زوجا او فردا. دغه عدد به جفت یا طاق وي.

**سالبه** : ليس اما ان يكون هذا الانسان كاتبا اواسود. دغه انسان به صرف يا كاتب او يا به اسود
وي دغه ډول نه ده. بلکه دواړه کيدای سي.

**د قضيه داجزاؤ نومونه**: په قضيه حمليه کي دري اجزاء وي.

۱ : **موضوع**: د حمليه اول جزء چي محکوم عليه دی ته موضوع ويل کيږي.

**د تسميه د وجي بيان**: موضوع د اسم مفعول صيغه په معني سره د هغه شي دی چي وضع سوي وی. لهذا محکوم عليه هم ددې لپاره وضع سوي چي په ده باندي حکم وسي.

۲ : **محمول**: د حمليه دوم جزء چي محکوم به دی هغه ته محمول ويل کيږي.

**د تسميې د وجي بيان**: محمول د مفعول صيغه په معني سره د هغه شي ده چي حمل کيږي. لهذا محکوم به هم د حمل کيدو لپاره وضع سوي دی.

**نسبت حکميه**: هر هغه جزء چي هغه د موضوع او د محمول تر مينځ تعلق او ربط پيدا کوی. او دغه يو معنوی شي دی. او په دې باندي دلالت کونکي لفظ ته رابط ويل کيږي.

**وجه د تسميې**: حکمي کي ياء نسبتي ده. هر هغه نسبت چي د هغه نسبت و حکم ته کيږي. لهذا په دغه نسبت حکم واقع کيږي ددغه وجي ده ته نسبت حکمي ويل کيږي.

د شرطيه دوه اجزاء وي. اول جزء ته مقدم ويل کيږي (ځکه دغه جزء په ذکر کولو کي مخکي وی) او دوم جزء ته ئې تالي ويل کيږي (ځکه تالي د تُلو څخه ده او دغه په معني سره د تبع ده. دغه ډول د شرطيه دوم جزء په ذکر کي د اول جزء تابع وی دا ډول چي ورئسته تر ده راځي)

فان الحکم فيها: منفصله دوه قسمونه لري.

۱ : **منفصله موجبه**: هر هغه منفصله چي په هغه کي حکم په منافات سره تر مينځ د قضيو تر سره سوی وی هغه منفصله موجبه ده.

**مثال**: "العدد اما ان يکون زوجاً او فرداً" يعني عدد به جفت او يا طاق وی. اوس دلته ددغه منفصله دوه طرفونه دي . "کون العدد فردا" . يعني عدد طاق کېدل. ۲: "کون العدد زوجا". يعني د عدد جفت کېدل. اوس په دغه قضيه کي حکم په دې سره سوی دی چي ددوی دوو تر مينځ منافات

وجود لري، دوى دواړه يو ځاى سره جمعه كېداى نسي، داسي كوم عدد نسته چي هغه دي جفت هم وى او طاق هم.

۲: **منفصله سالبه** : هر هغه شرطيه چي په دې كي حكم په سلب سره د تنافى په ما بين كي ددو قضيو سوى وى. د مثال په توګه "زيد ليس اما ان يكون حيوانا او كاتبا" زيد به محض حيوان يا كاتب وى او دواړه نه سي كيداى داډول نه ده، بلكه دواړه كيداى سي. اوس په دغه قضيه كي حكم په سلب سره د منافات په ما بين كي د زيد د حيوانيت او دزيد د كاتبوالي سوى دى.

**سوال**: محشي د منفصله سالبه دپاره دغه مثال" ليس ان كانت الشمس طالعة فالليل موجود" وړاندى كړى دى او حال دا چي دغه مثال دپاره د منفصله سالبه صحت نه لرى، ځكه په منفصله سالبه كي حكم په سلب سره د ضديت تر مينځ د قضيو سوى ، يعني دواړه طرفونه يو ځاى جمعه كېداى سي، او دلته لمر راختل او شپه موجودېدل دا يوځاى كېداى نسي، نو بيا دغه محشي څرنګه مثال ګرزولي دى؟

**جواب**: خبره هم دغسي ده، مګر دغه مثال دپاره د متصله سالبه دى چي په هغه كي حكم په سلب د صادق والي د يوې قضيه پر تقدير د صادق والي د هغه بلي قضيې سوى وى.

**مثال** : "ليس ان كانت الشمس طالعة فاليل موجود".

**آسانه طريقه** : دلته دوه طرفونه دى .۱: د لمر راختل. ۲: د شپې موجود والي. اوس لمر راختل او د شپې موجود والي نسي سره جمعه كېداى. لهذا اوس معني د جمله دا ګرزى، كه لمر راختلي وى نو شپه به موجوده وى، آيا داسي كېداى سي نو جواب به ستا د طرفه څه وى، جواب به دا وى چي دا نسي كېداى نو هم دغه معني د "ليس" ده. يعني دا كېداى نسي چي لمر دي راختلي وى او شپه دي موجوده وى.

**وجه د تسميې د شرطيه** : شرطيه ته په دې وجه شرطيه ويل كيږى چي دغه پر حرف شرط مشتمله وى، نو دغه تسميه د كل په اسم سره د جزء ده. او متصله بيا په دې وجه ورته ويل كيږى چي تالي متصله د مقدم سره په موجبه متصله كي وى. او سالبه متصله ته بيا په دې وجه متصله وايي چي دا مشابهت د موجبه متصله سره په طرفينو كي لرى (لكه خرنګه د يوې

طرفین نه مفرد حقیقي او نه حکمي وي دغه ډول ددغه بلي). **نو ددغه مشابهت په وجه دې ته دغه** نوم ورکول سو.

**سوال:** د حملیه دوم جزء ولي په محمول سره مسمي سو؟

**جواب:** محمول د مفعول صیغه ده، او دغه دوې معناګاني لرې.

۱ : **لغوی معني:** هغه شي چي پر بل شي باندی بار او اچول سوی وی، هم دغه ډول محکوم به پر موضوع باندی حمل سوی او بار سوی وی.

۲ : **معني اصطلاحي:** اتحاد او یو والي د هغو دوشیانو تر مینځ کوم چي د ذهن په اعتبار سره جلا او په اعتبار د خارج سره یو وی. په دې صورت کي محمول هم د موضوع سره ذهناً جلا والي او په خارج کي یو والي لری.

فتدبر: **سوال:** محمول په لغوی او که په اصطلاحي معني مراد سي نو دغه د سالبه حملیه پر محمول باندی صادقه نه راځي ، ځکه په سالبه کي نه حمل پر موضوع وی،بلکه سلب د موضوع څخه وی. او نه محمول اتحاد د موضوع سره په خارج کي لری، بلکه سلب د اتحاد وی. لهذا د حملیه سالبه و دوم جزء ته محمول ویل صحت نه په اعتبار د معني لغوی او نه معني اصطلاحي لری؟

**جواب:** د سالبه و دوم جزء ته محمول ویل په اعتبار د موجبه دی، لهذا دغه تسمیه مجازی ده، داډول دوم جزء ته د موجبه محمول ویل کیږی. او سالبه د موجبه سره په طرفینو کي تشبیه په دې کي لری چي د سالبه طرفین هم دغه ډول مفرد حقیقي یا حکمي وی لکه د موجبه طرفین چي مفرد حقیقي یا حکمي وي. لهذا ددغه تشبیه د وجي پر دوم جزء د سالبه اطلاق د محمول وسو. او په دې کي کوم حرج نسته.

و انما عد المنفصلة : **سوال:** منفصله ته ولي شرطیه ویل کیږی او حال دا چي په دې کي حرفِ شرط هم وجود نه لری؟

**جواب:** منفصله که څه هم في الحال پر حرف شرط مشتمله نه وی مګر تأویل و هغه صورت ته کیږی چي په هغه کي حرفِ شرط وجود لری. ځکه زموږ د دې قول "العدد اما ان یکون زوجا او فرداً"

معني داده " العدد ان كان زوجاً فليس بفرد، و ان كان فرداً فليس بزوج" يعني عدد كه چيرى جفت وى نو بيا طاق نه وى او كه چيرى طاق وى نو بيا جفت نه وى.

الزوج ما يكون منقسما: **سوال:** زوج او فرد و څه ته ويل كيږى؟

**جواب:** زوج هغه ته ويل كيږى چي برابر تقسيميږى، لكه څلور ، دغه اوس برابر دوو، دوو ته وېشل كيږى. او فرد هغه ته ويل كيږى چي برابر نه ويشل كيږى. لكه درې، اوس دغه برابر نه وېشل كيږى.

الجزء الاول من الجملية: **سوال:** اول جزء ته د حمليه ولي موضوع ويل كيږى؟

**جواب:** موضوع د اسم مفعول صيغه په معني سره د هغه شي ده چي هغه وضع سوي وى. لهذا محكوم عليه هم ددې لپاره وضع شوي چي په ده باندي حكم وسي. او يا موضوع په لغت كي و معين شي ته ويل كيږى. دغه ډول اول جزء د حمليه هم معين ددې لپاره وى چي پر ده بل څوك حمل كړل سي.

**سوال:** موږ دا خبره نه منو چي اول جزء ته د حمليه موضوع ويل كيږى، ځكه په دې مثال كي "في الدار زيد" كي اول جزء "في الدار" دى مګر دغه ته موضوع نه ويل كيږى؟

**جواب:** دلته اول دوه حيثيته لري.

۱: اول په اعتبار د لفظ چي اولاً دغه لفظ راغلي وى.

۲: اول په اعتبار د رتبه سره يعني رتبه ، او مقام دده اول وى. لهذا دلته مراد د اول څخه اول په اعتبار د رتبه دى، بيا عام تردې په اعتبار د لفظ هم اول وى لكه "زيد كاتب"، او كه په اعتبار د لفظ اول نه وى لكه په ذكر سوى مثال كي "في الدار زيد" چي زيد دى ، دغه په اعتبار د لفظ ورسته دى.

انما سمي الجزء الثاني الخ: **سوال:** دوم جزء ته د شرطيه ولي تالي ويل كيږى؟

**جواب:** ځكه تالي د "تلو" څخه مشتق دى. او تلو و تابعوالي ته ويل كيږى ، دغه ډول تالي تابع د مقدم وى. دغه تابعوالي يې كله په اعتبار د لفظ او طبعيت دواړو وى، او كله بيا په اعتبار د لفظ نه وى خو په اعتبار د طبعيت او مقام وى. او دغه په هغه صورت كي چي شرط ورسته تر جزاء وى.

## عبارت

وَالْقَضِيَّةُ: إِمَّا مُوجَبَةٌ :كَقَوْلِنَا زَيْدٌ كَاتِبٌ.وَإِمَّا سَالِبَةٌ كَقَوْلِنَا زَيْدٌ لَيْسَ بِكَاتِبٍ. وَكُلُّ وَاحِدَةٍ مِنْهُمَا إِمَّا مَخْصُوصَةٌ كَمَا ذَكَرْنَا .وَإِمَّا كُلِّيَّةٌ مُسَوَّرَةٌ :كَقَوْلِنَا كُلُّ إِنْسَانٍ كَاتِبٌ، وَلاَ شَيْءَ مِنَ الْإِنْسَانِ بِكَاتِبٍ .وَإِمَّا جُزْئِيَّةٌ مُسَوَّرَةٌ: كَقَوْلِنَا بَعْضُ الْإِنْسَانِ كَاتِبٌ، وَبَعْضُ الْإِنْسَانِ لَيْسَ بِكَاتِبٍ .وَإِمَّا أَنْ لا يَكُونَ كَذلِكَ، وَتُسَمَّى مُهْمَلَةً: كَقَوْلِنَا الْإِنْسَانُ كَاتِبٌ وَالْإِنْسَانِ لَيْس بِكَاتِبٍ .

## ترجمه

قضيه به يا موجبه وي، لكه زموږ دا قول "زيد ليكونكي دى". او يا به سالبه وي لكه زموږ دا قول " زيد ليكونكي نه دى". او هر يو ددوى څخه به مخصوصه يعني موضوع به يې يو معين شخص وي لكه زموږ په ذكر سوي مثالونو كي. او يا به كليه مسوره وي لكه زموږ دا قول " هر انسان ليكونكي دى". او "د انسان څخه يو فرد هم ليكونكي نه دى".او يا به جزئيه مسوره وي لكه زموږ دا قول "بعض انسانان ليكونكي دي".او " بعض انسانان ليكونكي نه دى. او يا به دغه ډول نه وي نو دغه ته مهمله ويل كيږي. لكه زموږ دا قول " انسان ليكونكي دى". او "انسان ليكونكي نه دى".

## تشريح

قضيه مطلقا عام تر دې حمليه او كه شرطيه وي دوه قسمونه لري. ۱: موجبه. ۲:سالبه.

**سوال:** قضيه ولي په موجبه او سالبه كي حصر سوه؟

**جواب:** ځكه قضيه به يا حمليه وي نو دغه به د دوو حالو څخه خالي نه وي.

۱: كه چيري په دې كي حكم په ثبوت د محمول لپاره د موضوع سوي وي نو دغه مؤجبه ده. د مثال په توګه "زيد ليكونكي دى".

۲: كه چيري په دغه كي حكم په سلب د محمول د موضوع څخه سوي وي د مثال په توګه " زيد ليكونكي نه دى" دغه سالبه ده.

او قضيه به يا شرطيه متصله وي نو بيا د دوو حالو څخه خالي نه وي.

۱: كه چيري په دې كي حكم په صادقوالي د يوې قضيه پر تقدير د صادقوالي ددويمي قضيې سوى وي نو دغه منفصله موجبه ده .

**مثال:** "که چیري لمر راختلي وی نو ورځ به موجوده وی". اوس په د غه کي حکم په صادقوالي سره د موجود والي د ورځي پر تقدیر د لمر د راختو سوي دی.

۲: که چیري حکم په سلب سره د صادقوالي د یوې قضیه پر تقدیر د صدق د بلي قضیې سوي وی نو د غه متصله سالبه ده.

**مثال:** "داډول نه ده چي لمر دي راختلي وي او شپه دي موجوده وی". اوس په د غه کې حکم په سلبوالي سره د شپې پر تقدیر د صادقوالي د لمر د راختو سوي دی.

اویا به شرطیه منفصله وی، نو بیا د دوو حالو څخه به خالي نه وی.

۱: که چیري په دغه کي حکم په منافات سره ددو قضیوترمینځ سوي وی نو دغه منفصله مؤجبه ده.

**مثال:** "عدد به یا جفت او یا طاق وي".

۲: که چیري په دغه کي حکم په سلب د تنافی سره ددو قضیو ترمینځ سوی وی نو دغه منفصله سالبه ده.

**مثال:** "زید به یا حیوان او یا کاتب وی دغه ډول نه ده". اوس په دغه کي حکم په سلب سره د منافات تر مینځ د زید د حیوانیت او د ده د کاتبوالي سوې ده.

**سوال:** موجبه او سالبه څو قسمونه لري؟

**جواب:** دغه درې قسمونه لري:

۱:**مخصوصه:** هرهغه قضیه چي موضوع ددې یو معین شي وي، دغه په شخصیه او مخصوصه سره نمول کیږي.د مثال په توګه "زید لیکونکي دی. زید لیکونکي نه دی".

**وجه د تسمیه بیان:** دغه ته په دې وجه مخصوصه ویل کیږی چي موضوع د دغه قضیه یو شخص معین وي په دغه وجه سره په شخصیه او د موضوع د خاصوالي د وجي په مخصوصه سره نومول کیږي.

۲: **محصوره:** هر هغه قضیه چي موضوع ددې یو معین شخص نه وی.بلکه کلي وي، او حکم په افرادو د موضوع وي. او د موضوع د افرادو مقدرا بیان سوي وی. دغه ته محصوره او مسوره ویل کیږي.او دغه بیا په دوه قسمه ده.

**کلیه:** هر هغه محصوره چي په دی کي حکم په محمول سره پر ټولو افرادو د موضوع سوي وی، او یامحمول د ټولو افرادو څخه دموضوع سلب سوي وی.دغه ته محصوره او مسوره کلیه ویل کیږي.د مثال په توګه "هر انسان حیوان دی. او د انسان څخه یو لا هم ډبره نه ده".

**جزئیه:** هرهغه محصوره چي حکم په محمول سره پر بعضوافرادو باندي د موضوع سوي وی. او یاپه سلب سره د محمول د بعضو افرادو څخه د موضوع سوي وی. دغه ته محصوره جزئیه ویل کیږي.د مثال په توګه "بعض د حیوان څخه انسان وی. بعض د حیوان څخه انسان نه وی".

۳: **مهمله:** هر هغه قضیه چي په هغه کي مقدار د افرادو د موضوع نه ټوله او نه بعض بیان سوي وی دغه ته مهمله ویل کیږي.د مثال په توګه "الانسان حیوان" انسان حیوان دی."الانسان لیس بکاتب" انسان کاتب نه دی".

**د تسمیه د وجي بیان:** مهمله د امهال څخه ده.او اهمال پاته کېدولو او پرېښولو ته ویل کیږي دغه ډول په دغه قضیه کي هم بیان د افرادو پاته سوي وي.

په شرطیه کي اوضاع په مثل د موضوع په حملیه کي وی، په دغه وجه شرطیه درې قسمونه لری.

۱: **شرطیه شخصیه:** هرهغه شرطیه چي په هغه کې حکم په لزوم د تالي دمقدم سره یا په عناد دتالي دمقدم سره سوی وي په هغه وضع معین باندي چي هغه منافات دمقدمیت سره دمقدم نه لري. د مثال په توګه "ان جئتنی آلان اکرمک".که ته اوس چیري راغلې نو زه به ستا عزت و کړم".

۲: **شرطیه محصوره کلیه:** هر هغه شرطیه چي په هغه کي حکم په ټولو اوضاعو ممکنو باندي د مقدم سوي وی. دغه ته شرطیه محصوره کلیه ویل کیږي.عام تردې دغه متصله وي لکه "کلما کانت الشمس طالعة فالنهار موجود". څه وخت چي لمر راختلي وی نو ورځ به موجوده وی".او که منفصله وی د مثال په توګه"دائما اما ان یکون العدد زوجا او فردا" همیشه به عدد جفت یا طاق وی".

۳: **شرطیه محصوره جزئیه:** هرهغه شرطیه چي په هغه کي حکم په اتصال یا انفصال سره په بعضو غیر معین اوضاعو باندي د مقدم حکم سوي وی. د مثال په توګه "قد یکون اذا کان الشی حیوانا کان انسانا". کله کله که یو شي چیري حیوان وي نو هغه به انسان وی". "قد یکون اما ان یکون الشی حیوانا او ابیض". کله کله به یو شي حیوان یا سپین وی".

۳: **مهمله:** هره هغه قضیه شرطیه چي په دې کي کمیت دحکم[په دې سره چي په جمیع اوضاعو باندي دی او که په بعضو اوضاعو باندي دی] بیان سوی وي. لکه "ان کانت الشمس طالعة فالارض مضیئة". که چیري لمر راختلي وی نو مځکه به ځلیدونکې وی". "اما ان یکون الشمس طالعة واما ان لا یکون النهار موجودا". یا به لمر راختلي وی او یا به ورځ موجوده نه وی".

**سوال:** موجبه و کومي قضیې ته ویل کیږی؟

**جواب:** هر هغه قضیه چي په هغه کي نسبت خبری وقوع وی.

السالبة هي التي : **سوال:** سالبه و کومي قضیې ته ویل کیږی؟

**جواب:** هر هغه قضیه چي په هغه کي نسبت خبری لاوقوع وی.

فالحکم فیها ان کان بثبوت: که چیری حکم په ثبوت سره د محمول لپاره د موضوع سوی وی لکه "زید لیکونکي دی" نو دغه موجبه ده او که چیری حکم په سلب سره د محمول د موضوع څخه سوی وی نو دغه بیا سالبه ده. لکه "زید لیکونکي نه دی".

هي التي في اولها: **سوال:** مسوره کومه قضیه وی؟

**جواب:** مسوره هغه قضیه وی چي د هغه په شروع کي حرف سور راغلي وی، او حرفِ سور لفظ د "کل" او "بعض" او سېوا ددوی څخه نور لکه "لاشي" دي.

هي التي یحکم فیها الخ: **سوال:** کلیه کومه قضیه وی؟

**جواب:** هر هغه قضیه چي حکم په هغه کي پر ټولو افرادو د موضوع سوی وی، او یا سلب د حکم د ټولو افرادو څخه د موضوع سوی وی.

**سوال:** دغه قضیه ته کلیه ولي ویل کیږی؟

جواب: ځکه په دغه قضیه کي حکم پر ټولو افرادو باندی د موضوع سوی وی. او مسوره په دې وجه ورته ویل کیږی چي دغه پر حرفِ سور بانْدی مشتمله وی.

مسورة آه: سوال: مسورة په لغت کي څه ته ویل کیږی؟

جواب: مسورة د مفعول څخه ده، او دغه د سور څخه دی. او سور ددې قول څخه "سور البلد" اخیستل سوی دی. او "سور البلد" هغه دېوال ته ویل کیږی چي په ښار چار چاپېره راتاوی سوی وی. او دغه د باب څخه د "سار، یسار سوراً" دی، او دغه په لغت کي و احاطه کولو ته ویل کیږی. او په اصطلاح کي هغه لفظ ته ویل کیږی کوم چي په حملیه کي پر تعداد د افرادو د موضوع دلالت کوی او په شرطیه کي پر کمیت د اوضاعو د مقدم دلالت کوی. او دغه ته محصوره په دې وجه ویل کیږی چي محصوره د حصر څخه ده.او حصر په معني سره د محاصره کولو او چارچاپیر کېدو دی.دغه ډول دغه قضیه پر افرادو د موضوع (په قضیه حملیه کي) ، او پر اوضاعو د مقدم (په شرطیه کي) محاصره کونکې او چارچاپیره وي.

سوال: په موجبه حملیه کي د سور لپاره کوم کوم الفاظ راځي؟

جواب: سور د موجبه کلیه "کل" دی. او هر هغه حرف دی چي هغه استغراق فائده کوی. او سور د سالبه کلیه دوه دي.۱: لاشی.۲: لا واحد. د مثال په توګه "لا شی او لا واحد من الانسان بجماد" یو لا هم د انسان څخه ډبره نه ده. او سور د موجبه جزئیه دوه دي.۱: بعض".۲: واحد. د مثال په توګه "بعض الحیوان یا واحد الحیوان انسان".بعض حیوان یا یو د حیوان څخه انسان دی. او سور د سالبه جزئیه درې دي.۱: لیس کل.۲: لیس بعض.۳: بعض لیس. د مثال په توګه " لیس کل، لیس بعض یا بعض لیس الحیوان انسانا". او سور د موجبه کلیه متصله څلور دي. ۱: متی،۲: کلما،.۳: مهما .۴: حیثما دي. او سور د موجبه کلیه منفصله لفظ د "دائما" دی. او سور د سالبه کلیه متصله او منفصله " لیس البتة" دی. او سور د موجبه جزئیه متصله او منفصله "قد یکون" دی. او سور د سالبه جزئیه متصله او منفصله "قد لا یکون" دی.

﴿فائده﴾: داوضاعو بیان: هغه تقادیر او احوال چي مقدم ته هغه وخت وراندي سي څه وخت چي مقدم په داسي شیانو سره متصفه سي چي د هغوی یو ځای والي ممکن وی.بیا عام تر دې دغه تقادیر په نفس الامر کې محال وي [لکه کلماکان الفرس انسانا کان الفرس حیوانا. د دې معني داده چي لزوم

دحيوانيت دفرس لپاره دانسانيت دفرس دغه لزوم ثابت په هغه اوضاعو باندې دی چي دمقدميت سره د مقدم منافات نه لري. او هغه تقادير دادی چي فرس ضاحک وي او ناطق او کاتب وي. ځکه فرس څه وخت انسان سوا و د انسان لپاره دغه امور ثابت وی نو فرس چي انسان دی هم دغه امور ورسره جمع کيږي. لکن دغه تقادير (كون الفرس ضاحكا) په نفس الامر کې محال دی. ځکه فرس ضاحک او ناطق کېدلای نه سي]. او که دغه تقادير محال نه وي [لكه "كلما كان زيد انسانا كان حيو ا نا " اوس په دې مثال کې لزوم د تالي (حيوانيت زيد) ومقدم (انسانيت زيد) ته ثابت دی په هغه ټولو تقاديرو باندې چي د مقدميت سره دمقدم منافات نه لري او هغه تقادير دادي "كون زيد قائما او ضاحكا او كاتبا"].

هي التي لايكون الموضوع فيها الخ: سوال: مهمله و څه ته ويل کيږي؟

جواب: مهمله هر هغه قضيه ته ويل کيږي د کومي موضوع يو شخص نه وی او نه يو داسي کلي وی چي پر هغه حرفِ سور داخل سوی وی او نه يو داسي جزئي وی چي پر هغه حرفِ سور داخل سوی وی. بلکه کلي وی خو تعداد د افرادو يې بيان سوی نه وی.

## عبارت

وَالمُتَّصِلَةُ :إِمَّا لُزُومِيَّةٌ : كَقَوْلِنَا إِنْ كَانَت الشَّمْسُ طَالِعَة فالنَّهَارُ مَوْجُودٌ .وَإِمَّا اِتِفَاقِيَّةٌ. كَقَوْلِنَا: إِنْ كَانَ الْإِنْسَانُ نَاطِقًا فَالْحِمَارُ نَاهِقٌ .وَالمُنْفَصِلَةُ إِمَّا حَقِيقَةٌ: كَقَوْلِنَا: الْعَدَدُ إِمَّا زَوْجٌ وَإِمَّا فَرْدٌ .وَهِيَ إِمَّا مَانِعَةُ الجَمْعِ وَالْخَلَوِّ مَعًا كَمَا ذَكَرْنَا

وَإِمَّا مَانِعَةُ الجَمْعِ فَقَطْ كَقَوْلِنَا: هذَا الشَّيْءُ إِمَّا أَنْ يَكُونَ شَجَرًا أَوْ حَجَرًا .وَإِمَّا مَانِعَةُ الْخُلُوِّ فَقَطْ كَقَوْلِنَا: زَيْدٌ إِمَّا أَنْ يَكُونَ فِي الْبَحْرِ، وَإِمَّا أَنْ لاَ يَغْرَقَ .وَقَدْ تَكُونُ المُنْفَصِلاَتُ ذَوَاتِ أَجْزَاءٍ كَقَوْلِنَا: الْعَدَدُ إِمَّا زَائِدٌ أَوْ نَاقِصٌ أَوْ مُسَاوٍ.

## ترجمه

متصله به یا لزومیه وی، لکه زمونږ دا قول "که چیری لمر راختلي وی نو ورځ به موجوده وی". او یا به اتفاقیه وی. لکه زمونږ دا قول "که چیری انسان ناطق وی نو خر به ناهق وی". او منفصله به یا حقیقه وی لکه زمونږ دا قول " عدد به یا جفت وی، او یا به طاق وی". او دغه مانعة الجمع او مانعة الخلو دواړه دي. او یا به محض مانعة الجمع وی لکه زمونږ دا قول " دغه شي به یا درخته او یا به ډبره وی". او یا به محض مانعة الخلو وی لکه زمونږ دا قول " زید به یا په دریاب کي وی او یا به غرق نه وی ". او کله کله منفصلات څو اجزاء لرونکي وي لکه زمونږ دا قول " عدد به یا زائد او یا ناقص او یا به مساوی وی".

## تشریح

**شرطیه متصله لزومیه:** هر هغه شرطیه چي د یوې علاقې په وجه حکم په دې کي په صادقوالي یا په عد مي صادقوالي سره دتالي پر تقدیر دصادقوالي د مقدم سوي وی دغه ته لزومیه ویل کیږي.

**سوال: علاقه و څه ته ویل کیږي؟**

**جواب:** هر هغه شي چي د هغه په سبب یو شي د بل شي سره ملګري سي.او دلته مراد هر هغه شي دی چي د هغه په سبب مقدم د تالي سره یوځای والي طلبوي.او دغه علاقه دوه قسمه لري.

۱: **موجبه:** هغه علاقه چي هغه د یوه شي د بل شي سره یو ځای والي لازم ګرزوي لکه علتیت د شي لپاره د معلول.

۲: غیر موجبه: هغه علاقه چي هغه د یوه شي د بل شي سره یو ځای والي طلبوي مګر لازم ئې نه ګرزوي لکه د شي شرطیت لپاره د مشروط.

**سوال:** علتیت په څو صورتونو کي راځي؟

**جواب:** په دري صورتونو کي.

۱: مقدم علت لپاره د تالي وي. د مثال په توګه "ان كانت الشمس طالعة فالنهار موجود". که چیري لمر راختلي وی نو ورځ به موجوده وی. دلته د لمر راختنه علت لپاره د ورځي د موجود والي دی.

۲: تالي علت لپاره د مقدم وي. دمثال په توګه "ان كان النهار موجودا فالشمس طالعة" که چیري ورځ موجوده وی نو لمر به راختلي وی، دلته د لمر راختنه د ورځي د موجود والي لپاره علت دی.

۳: مقدم او تالي د یو دریم شي لپاره معلول وي داډول چي دغه شي د مقدم او تالي تر مینځ د یوه داسي ارتباط تقاضی کوي چي د هغه په وجه ددوی ترمینځ جلاوالي راتلنه ممتنع و ګرزی. دمثال په توګه "ان كان النهار موجودا فالعالم مضئ" که چیري ور ځ موجوده وی نو دنیا به روښانه وي. اوس دلته دورځي موجودوالي اوددنیاروښانه والي دوا ړه معلول د لمر د راختي دپاره دي.

**سوال:** موږ دغه خبره نه منو چي د علت او معلول تر مینځ علاقه د علتیت وی. بلکه ددوی ترمینځ علاقه د تضایف وي. ځکه د علت معني ده "ما له معلول". هر هغه شي چي ده لره معلول وي". او د معلول مطلب دا دی "ما له علة". چي ده لره علت وی". او دغه علاقه د تضایف ده نه د علتیت. ځکه د یوه تصور بېله هغه بله نسي کېدای؟

**جواب:** دلته د علت او معلول مفهومونه مراد نه دي. بلکه دلته هغه شي مراد دی چي هغه ته دغه مفهومونه ورعارضیږي. او ددوي د مفهومونو د معروضانو ترمینځ علاقه د تضایف نسته بلکه علاقه د علتیت ده.

**سوال:** علاقه محض دغه یو قسم "علتیت" لری او که کوم بل یو هم لری؟

**جواب:** هو، د علاقې دوه قسمه لری. ۱: علتیت. ۲: تضایف (د دوو موجودو شیانو داسي کیدنه چي د یوه تصور او تعقل بېله هغه بله نسي راتلای. د مثال په توګه "که چیري زید د عمر لپاره پلار نو عمر به د زید زوی وي. نو اوس د زید د عمر لپاره پلار کېدنه په تصور د زوی والی د عمر لپاره د زید موقوفه دی) ده.

**اتفاقیه:** هر هغه شرطیه چي په هغه کي حکم په صادقوالي سره د تالي پر تقدیر د صادقوالي د مقدم د وجي د یوې علاقه نه وی نو دغه ته اتفاقیه ویل کیږي. د مثال په توګه "که چیري انسان ناطق وی نو خر به ناهیق وی". اوس د انسان د ناطقیت او د خره د ناهقیت تر مینځ کوم قسم د علاقه وجود نه لري.

**سوال:** منفصله څو قسمونه لري؟

**جواب:** منفصله دري قسمونه لري.

**اول: منفصله حقیقیه:** هغه شرطیه ده چي په هغه کي حکم په منافات ددوو قضیو ترمینځ په اعتبار د صدق او کذب د دواړو په یوه پلا سوي وي دا ډول چي دوی د صدق او نه د کذب په اعتبار سره جمع کیږي (یعني خالوالي د طرفینو څخه ناروا وی، او یو ځای والي د طرفینو هم ناروا وي). او دغه ته منفصله حقیقیه ویل کیږي. دغه بیا دوه قسمه لري.

۱: **موجبه:** حکم په تنافی سره په اعتبار د صدق او د کذب ددواړو سوي وی. لکه زموږ دا قول: "دغه عدد به یا جفت او یا طاق وي". ځکه په دغه قضیه کي حکم په منافات د زوجیت او د فردیت په اعتبار د صدق او د کذب دواړو سوي دی.

۲: **سالبه:** حکم په نفي سره د منافات په اعتبار د صدق او د کذب سره سوي وي دغه ته منفصله حقیقیه سالبه ویل کیږي. لکه زموږ دا قول: "داډول نه ده چي دغه به یا حیوان او یا به تور وي". اوس په دغه کي حکم په نفي سره د منافات ترمینځ د حیوان او د تورپه صدق او کذب په دواړو سوی دی.

**دوم: مانعة الجمع:** هغه منفصله چي په هغه کي د قضیو ترمینځ حکم په منافات سره محض په اعتبار د صدق سوی وی نه د کذب، او یا حکم په سلب سره د منافات تر مینځ د قضیو په اعتبار د محض صدق سوی وی نه د کذب. (یعني خالوالي د طرفینو څخه روا اویو ځای والي ئې ناروا وي). دغه ته منفصله مانعة الجمع ویل کیږي لکه زموږ دا قول: "دغه شي به یا درخته او یا به ډبره وي".

**دریمه: مانعة الخلو:** هغه منفصله چي په هغه کي حکم په نفي سره د ددو قضیو صرف په اعتبار د کذب سوي وي نه د صدق (یعني خالوالي د طرفینو څخه روا نه وي البته یو ځای والي ئې روا وي)

دغه ته منفصله مانعة الخلو ويل کيږي، ځکه زموږ دا قول: "زيد به يا په درياب کي وي او يا به غرق نه وي". دغه مثال د موجبه دی. او د سالبه مثال دا دي: "داسې نه ده چي دغه انسان دي رومي يا زنجي وي".

خلاصه حواشي ايوبي

هي ما يکون الاول علة الخ: لزوميه هغه ده چي په هغه کي مقدم علت لپاره د تالي وي.

**مثال:** "ان کانت الشمس طالعة فالنهار موجود" که چيري لمر راختلي وی نو ورځ به موجوده وی. دلته مقدم لمر راختنه ده، او تالي دورځي موجودوالي دی. لمر راختنه علت لپاره د ورځي د موجودوالي دی.

او يا به مقدم او تالي دواړه د يو دريم شي لپاره معلول وي داسې چي دغه شي د مقدم او تالي ترمينځ د يوه داسي ارتباط تقاضی کوي چي د هغه په وجه ددوی ترمينځ جلاوالي راتلنه ممتنع ګرزېدلې وی.

**مثال:** "ان کانت الارض مضيئة فالنهار موجود" که چيري مځکه روښانه وی نو ورځ به موجوده وی. اوس دلته مقدم د مځکي روښانوالي دی، او تالي د ورځي موجودوالي دی. اوس دلته د ورځي موجودوالي او د مځکي روښانوالي دغه دواړه معلول لپاره د لمر راختولو دی، ځکه تر څه وخته پورې چي لمر راختلي نه وی تر هغه پورې نه مځکه روښانه وی، او نه ورځ موجوده وی.

هي التي يکون الحکم فيها: اتفاقيه هغه قضيه شرطيه ده چي په هغه کي حکم په صادقوالي سره د تالي په تقدير د صادقوالي د مقدم د وجي د يوې علاقه نه وی، بلکه محض د مقدم او تالي تر مينځ موافقت او يو ځای د وجي راغلي وی.

اما حقيقة آه ، انما سميت الخ : **سوال:** دغه ته حقيقيه ولي ويل کيږی؟

**جواب:** ځکه انفصال په حقيقت کي ددې نوم دی چي دوې قضيې يعني مقدم او تالي داسې وي چي نه ددوی يو ځای والي روا وی او نه ددوی څخه د يو شي خالي والي روا وی. د مثال په توګه جفت او طاق. ددوی څخه يو عدد هم خالي نه دی، او نه دوی دواړه پر يوه عدد سره جمعه کېدای سي. څرنګه انفصال په حقيقت کي د دغه نوم دی او دغه محض په دغه قضيه کي

وجود لری په دې وجي دې ته نوم د حقيقيه ورکول سو. په خلاف د هغه منفصله چي محض مانعة الجمع وی، او يا مانعة الخلو وی.

قوله العدد الواحد الخ: **سوال:** دغه قضيه "العدد اما زوج او فرد" کومه منفصله ده؟

**جواب:** دغه منفصله حقيقيه ده، ځکه يو داسي عدد وجود نه لری چي هغه دي جفت او طاق دواړه وی. او يا دي يو د دوی څخه هم نه وی.

و هذا مثال مؤجبتها الخ: دغه په متن کي ذکر سوی مثال د موجبه دی، مګر منفصله حقيقيه سالبه داده چي په هغه کي نفي او سلب د منافات د مقدم او تالي تر مينځ په اعتبار د صدق او کذب د دواړو سوي وي، لکه زموږ دا قول "داډول نه ده چي دغه انسان به يا ليکونکي او يا به عالم وي" اوس په دغه کي حکم په منافات د کاتب او عالم ترمينځ په اعتبار د صدق او کذب د دواړو سوی دی. لهذا داسي هم کېدای سي چي دغه دي عالم هم نه وی او کاتب هم نه وی، او دا هم روا ده چي عالم دي هم وی او کاتب هم.

**﴿فائده﴾**: منفصله حقيقيه يوه معني لری کومه چي مصنف رحمه الله بيان کړه. پاته مانعة الخلو او مانعة الجمع دوی دوې معناګاني لري.

**اوله معني:** هغه منفصله چي په هغه کي حکم په منافات په ما بين کي د قضيو يا دده په نفي سره فقط په اعتبار دصدق سوي وي نه په اعتبار د کذب (يعني خالوالي د طرفينو څخه روا اويو ځای والي ئې ناروا وي). دغه ته منفصله مانعة الجمع ويل کيږي.

هر هغه منفصله چي په هغه کي حکم په نفي سره د دو قضيو صرف په اعتبار د کذب سوي وي نه د صدق (يعني خالوالي د طرفينو څخه روا نه وي البته يو ځای والي ئې روا وي) دغه ته منفصله مانعة الخلو ويل کيږي.

مانعة الجمع او مانعة الخلو په دغه معني سره مقابل د منفصله حقيقيه دي. او دغه معناګاني يې اصل دي ، ځکه په تقسيم کي اصل داوی چي دوی نه يو ځای سره جمعه کېدای سي ، او نه د دوی څخه خالوالي راتلای سي. او په دغه ذکر سوی معناګانو سره دوی يو د بل سره جمعه کېدای نسي او نه د دوی څخه يو قسم خالي کېدای سي.

**دويمه معني : مانعة الجمع** هر هغه قضيه ده چي په هغه كي د طرفينو تر مينځ منافات په اعتبار صادقوالي وى، بيا عام تردې په اعتبار د كذب هم وى او كه نه وى. په دغه تعريف كي قيد د فقط وجود نه لرى، ددې مطلب دا سو چي د مانعة الجمع طرفين يو ځاى كېداى نسي عام تردې دواړه مرتفع وى او كه نه وي. لهذا په دې كي عموم وجود لرى.

مانعة الخلو هغه قضيه ده چي په هغه كي د طرفينو ترمينځ د منافات حكم په اعتبار د كذب تر سره سوى وى، بيا عام تردې په اعتبار د صدق منافات وى او كه نه وى.

**لإنه لإيجوزالجمع الخ:** دلته د طرفينو څخه يو د شي ډبر كېدل دى او بل طرف د شي درخته كېدل دى. نو اوس دغه نه دواړه كېداى سي چي ډبره دي هم وى او درخته دي هم وى، البته داسي كېداى سي چي دغه دي نه ډبره وى او نه دي درخته وى. بلكه كوم دريېم شي دى وى. د مثال په توګه انسان دى وى. او يا دې د انسان څخه علاوه كوم بل شي وى.

**يعني يجوزان يكون:** دلته طرفين زيد په درياب كي كېدل دى او د زيد د غرقېدل دى. اوس دلته دواړه طرفين يو ځاى سره جمعه كېداى سي، ځكه دلته دا ممكنه ده چي زيد دي په درياب كي وى، او غرق دي نه وى، دا هغه وخت چي دى په درياب كي لمبو كوى، او يا دي په كښتي كي سپور وى. په دغه صورت كي په درياب كي هم دى او غرق هم نه دى. او دلته دا كېداى نسي چي يو د طرفينو څخه دى هم نه وى داډول چي زيد دي په درياب كي نه وى او غرق سوى دى وى.

سالبه مانعة الخلو هغه ده چي په هغه كي حكم په سلب سره د نفي د ددو قضيو صرف په اعتبار د كذب سوي وي نه د صدق.

**مثال:** "ليس اما ان لا يكون في البحر و اما ان يغرق "يعني داډول نه ده چي زيد دي په درياب كي وى او غرق سوى دى وى.

**آسانه طريقه:** زيد دى په درياب كي نه وى بلكه پر مځكه دي وى او غرق سوى دى وى، اوس ستا څخه پوښتنه كوو چي آيا داسي كېداى سي نو جواب دادى چي نسي كېداى، او هم دغه د "ليس" معني ده. او په دغه منفصله كي دوه طرفونه دي .

[1]: په درياب كي نه كېدل. او ددې څخه خالي والي داډول راځي چي په درياب كي دى وى.

۲: غرقېدل. او ددې کذب داډول راځي چي غرق دی نه وی. نو اوس د طرفينو څخه خالي والي دلته روا دی او داسي کېدای سي چي زيد په درياب کي دی او غرق نه دی، نو په دې صورت کي سلب د منافات په کذب کي تر سره سوی دی.

**بله طريقه:** "ليس زيد اما ان لايكون في البحر او ان يغرق" اوس د مثال د فهمېدلو لپاره ته ليس د قضيې څخه پورته کړه. نو تقدير دا ډول کيږي "اما ان لايكون في البحر ان يغرق". او معنى يې دا ده چي زيد به يا په درياب کې نه وي يا به غرق وي. او کذب د ان لايكون في البحر ،"ان يكون في البحر"دی او د "ان يغرق "کذب "ان لايغرق" دی. نو معنى د دې قول [ اما ان يكون في البحر او لايغرق ] دا سوه: زيد به يا په درياب کې وي يا به غرق نه وي لهذا دواړه کېدلای نه سي. او څه وخت چي ليس پرې داخل سي نو هغه تنافي په مابين کې د طرفينو پورته سي نو معنى دا سوه زيد دی په درياب کې وي او غرق دی نه وي.

**يعلم ان كل مادة صدق فيها الخ** : هر هغه مثال او ماده چي پر هغه موجبه منع الجمع صادقيږی هم هلته سالبه مانعة الخلو صادقيږی.

**مثال:** "هذا الشي اما شجر او حجر" يعني دغه شي به يا ډبره او يا به درخته وی، لهذا يو طرف ډبره او بل طرفه درخته دهٔ، اوس يو شي داسي نسي کېدای چي هم دي ډبره او هم دي درخته وی. البته داسي يو شي کېدای سي چي د طرفينو څخه يو لاهم نه وی، د مثال په توګه انسان وی. نو دلته د طرفينو جمعه نارو ا او خالو الي روا دی.

اوس هم پر دغه مثال سالبه مانعة الخلو صادقيږي.

**مثال:** "ليس هذا الشي اما شجر او حجر ".دغه ډول نه ده چي دغه شي به يا درخته وی او به ډبره وی. نو د سالبه مانعة الخلو معني داسوه چي خالي والي د يو شي د طرفينو څخه راتلای او هم دغه معني د موجبه مانعة الجمع ده چي خالي راتلای سي نه يو ځای والي.

او هر هغه قضيه چي پر هغه موجبه مانعة الخلو صادقيږی هم هلته به سالبه مانعة الجمع صادقيږی.

**مثال:** "هذا الشيء اما لاشجر او اما لاحجر". اوس دغه قضيه موجبه مانعة الخلو ده، لهذا دلته پر يو شي باندی طرفين جمعه کېدای سي، البته د طرفينو څخه يو شي هم خالي کېدای نسي، دا

کېدای سي چي يو شي دي نه ډبره وي او نه درخته وي بلکه د مثال په توګه انسان دی وی، لهذا پر انسان "لاشجر" او "لاحجر" سره جمعه سوه. او داسي کېدای نسي چي يو شي دی هم "لاشجر" نه وی، او هم دي "لاحجر" نه وی، ځکه يو شي هم د نقيضينو څخه خالي نه وی مثلا يو شي به خامخا "لاحجر" وی او يا به "لاحجر" وی. ځکه د "حجر" څخه علاوه ټوله شيان "لاحجر" دی. هم دلته اوس که يو شي "لاحجر" نه وی او دغه ډول "لاشجر" هم نه وی، نو هرو مرو به پر دغه شي ددوی دوو "لاشجر، لاحجُر" مقابل او نقيض پر صادقيږی چي هغه "شجر" او "حجر" دی. نو يو شي شجرهم سو او حجر هم سو، او حال دا چي يو شي دغه دواړه کېدای نسي. نو معلومه سوه چي دلته د طرفينو څخه د يو شي خالي والي ناروا دی، البته د طرفينو يو ځای والي روا دی.

هم اوس پر دغه سالبه مانعة الجمع پر صادقيږی.

**مثال:** "ليس اما ان يكون هذا الشيء لاشجر و لاحجر". په موجبه مانعة الجمع کي د طرفينو يو ځای والي ناروا وو، او په سالبه کي دغه ناروالي سلب سوی دی، لهذا طرفين پر يوه ځای صادقه راتلای سي. نو دلته يو طرف د شي "لاشجر" کېدل دی او بل طرف يې د شي " لاحجر" کېدل دی. نو اوس يو کس وايي چي يو شي "لاشجر" او "لاحجر" کېدای نسي. نو ايا ته دغه خبره منې، نو ستا جواب به په "نه" سره وی (ځکه يو شي "لاشجر" او "لاحجر" دواړه کېدای سي لکه انسان چي "لاشجر " هم دی او "لاحجر " هم دی)، او هم دغه معني د ليس ده. نو دلته د طرفينو پر يو ځای صادقوالي ممتنع نه دی، او هم دغه معني د سالبه مانعة الخلو ده.

**وكذا من جانب سالبتها:** چيری چي سالبه مانعة الجمع صادقيږی هم هلته به موجبه مانعة الخلو صادقيږی.

**مثال:** ليس هذا الشيء اما لاشجر او لاحجر ". اوس دلته يو طرف د شي لاشجريت دی، او بل طرف د شي لاحجريت دی. اوس ته " ليس" د آساني لپاره لری که. نو عبارت دا جوړيږی " هذا الشي اما لاشجر او لا حجر ". نو معني داسوه چي يو شي "لاشجر " او "لاحجر" کېدای نسي، نو ته دغه خبره منې، نو ستا د طرفه به جواب دا وی چي نه، يو شي دواړه کېدای سي چي هم دي لاشجر او هم

دي لاحجر وی لکه انسان. او هم دغه معني د "لیس" ده. او دغه د طرفینو پر یوشي باندی جمعوالي منعه وو، هغه "لیس" لری کړی، نو اوس دواړه طرفه پر یوشي صادقېدای سي.
او دغه ډول موجبه مانعة الخلو دلته هم صادقیږی،.
**مثال:** "هذا الشيء اما لاشجر او لا حجر". اوس دلته یو طرف لاشجریت او بل طرف لاحجریت دی لاشجریت او لاحجریت پر یوه شي باندی جمعه کېدای سي چي انسان دی. البته دا کېدای نسي چي یو شي دي لاشجر هم نه وی او لا حجر دي هم نه وی. ځکه که چیری لاشجر او لاحجر نسي نو ددوی نقیض به بیا پرې صاقیږی. د لاشجر نقیض شجر دی او دلا حجر نقیض حجر دی. نو یو شي به شجر هم وی او حجر هم وی. او حال دا چي یو شي شجر او حجر کېدای نسي، نو معلومه سوه چي داسي کېدای نسي چي یو شي دي ددغه طرفینو څخه خالي وی.
او چیری چي سالبه مانعة الخلو صادقیږی.
**مثال:** "لیس اما ان یکون هذا الشيء شجراً او حجراً" اوس دلته یو طرف شجریت او بل طرف حجریت دی. نو د آساني دپاره ته "لیس" د جملې څخه لری کړه. نو معني به دا سي چي دغه "شي به یا درخته وی او یا ډبره وی". اوس دلته یو شي شجر او حجر ګېدای نسي، البته دا کېدای سي چي نه دي شجر او نه دی حجر وی. نو دلته موجبه مانعة الجمع ده نه مانعة الخلو. او څه وخت چي "لیس" پر داخل سو نو اوس سالبه مانعة الخلو وګرزېده، ځکه په سالبه مانعة الخلو کي خالي والي د یو شي د طرفینو څخه روا وی. نو دلته هم د شجر او حجر څخه د یو شي خالي روا دی چي هغه مثلاً انسان دی.لهذا سالبه مانعة الخلو چي "حرفِ نفي" ځني لری کړې نو بیا موجبه مانعة الجمع ځني جوړه سي.
سوال: دغه کېدای سي چي په دریاب کي دی نه وی او غرق سوی دی وی لکه په مځکه ننوزی؟
**جواب:** دغه ته غرقېدل نه ویل کیږی بلکه دغه ته خسف او ننوتل ویل کیږی.
کالستة فان نصفها الخ: د مثال په توګه شپږ. اوس ددې نصف درې،ثلث ئې دوه او سدس ئې یو دي.نو ددغه کسورو ومجموعه شپږ ده.نو مجموعه د کسورو او دغه عدد سره برابر دي. نو شپږ ته عدد مساوي ویل کیږي.

العدد الزائد هو الذى الخ" **سوال:** عدد زائد ناقص او مساوي څه ته ویل کیږي؟

**جواب:** د اهل حساب په نیز عدد په دوه قسمه دي.

**اول: عدد منطق:** هر هغه عدد چي ده لره د نو صحی کسورو څخه یو کسر وي. او هغه کسور دا دي" ۱: **نصف**: نیم. ۲: **ثلث**: دریمه، ۳: **ربع**: څلورمه. ۴: **خمس**: پنځمه. ۵: **سدس**: شپږمه. ۶: **سُبع**: اومه. ۷: **ثُمن**: آتمه. ۸: **تُسع**: نمه. ۹: **عُشر**: لسمه. د مثال په توګه "آته". اوس ده لره نصف "څلور" ربع "دوه" او دغه ډول نور هم سته. او دغه په دري قسمه دي.

۱: **زائد:** هر هغه عدد چي په هغه باندي هغه کسور زیات وي چي هغه په ده کي موجود وي. د مثال په توګه دولس. اوس د دې نصف شپږ، ثلث ئې څلور، ربع ئې دري او سدس ئې دوه دي. نو د دغه ټولو کسور (نصف، ثلث، ربع، سدس) موجود و مجموعه پنځلس ده. او پنځلس تر دولسو زیات دی. لهذا دولس ته عدد زائد ویل کیږي.

۲: **ناقص:** هر هغه عدد چي تر هغه د ده کسور کم وي (کووم چي په ده کي موجود وي) د مثال په توګه څلور. او س د دې نصف دوه، ربع ئې یو دی. لهذا مجموعه د دغه کسورو دري دي. او دري تر څلورو کم دي. نو دغه څلور ته عدد ناقص ویل کیږي.

۳: **مساوي:** هر هغه عدد چي د ده سره هغه کسور برابر وي، چي هغه په ده کي موجود وي. د مثال په توګه شپږ. اوس د دې نصف دري، ثلث ئې دوه او سدس ئې یو دي. نو د دغه کسورو و مجموعه شپږ ده. نو مجموعه د کسورو او دغه عدد سره برابر دي. نو شپږ ته عدد مساوي ویل کیږي.

**دوم: اصم:** هر هغه عدد چي د ی د دغه صحی کسورو څخه یو لا هم نه لري. د مثال په توګه یو لس. او دغه لره نصف، ثلث، ربع دغه ډول نور کسور هم نسته.

## عبارت

التَّنَاقُضُ هُوَ اخْتِلاَفُ الْقَضِيَّتَيْنِ بِالْإِيجَابِ وَالسَّلْبِ بِحَيْثُ يَقْتَضِي لِذَاتِهِ أَنْ تَكُونَ إِحْدَاهُمَا صَادِقَةً وَالْأُخْرَى كَاذِبَةً. كَقَوْلِنَا زَيْدٌ كَاتِبٌ. زَيْدٌ لَيْسَ بِكَاتِبٍ .وَلاَ يَتَحَقَّقُ ذٰلِكَ إِلاَّ بَعْدَ اتِّفَاقِهِمَا فِي الْمَوْضُوعِ وَالْمَحْمُول وَالزَّمَانِ وَالْمَكَانِ وَالْإِضَافَة وَالْقُوَةِ وَالْفِعْلِ وَالْجُزْءِ وَالْكُلِّ وَالشَّرْطِ .نَحْوُ زَيْدٌ كَاتِبٌ، زَيْدٌ لَيْسَ بِكَاتِبٍ.

## ترجمه

تناقض اختلاف په اعتبار د ایجاب او سلب په ما بین کي ددو قضیو داډول دي چي دغه اختلاف په اعتبار د ذات د یوې قضیه د صادقوالي او دهغه بلي د کاذب والي تقاضی کوي. لکه زمونږ دا قول "زید لیکونکي دی" او " زید لیکونکي نه دی". او دغه تناقض تر هغه وخته پوری نه ثابتیږی ترڅو چي ددغه دواړو قضیو موضوع سره یوه نه وي. محمول سره یو نه وی. زمانه سره یوه نه وی، مکان یو نه وی. اضافت یو نه وی. قوت او فعل سره یو نه وی. کل او جزء یو نه وی. او شرط یو نه وی. لکه "زید لیکونکي دی"، او " زید لیکونکي نه دی".

## تشریح

**د تناقض د تعریف بیان:** هر هغه اختلاف چي په اعتبار د ایجاب اوسلب ددو قضیو په مابین کي وی. او دغه اختلاف دخپل ذات د وجي د یوې قضیې دربښتیا والي او د هغه بلي د درواغ والي تقاضی کوي.

دلته مصنف دا خبره ښیي چي تناقض مطلقا دداسي دو قضیو په ما بین کي نه راځي چي هغه د ایجاب او سلب په اعتبار سره مختلف وي. عام تردې دغه قضیي **مخصوصې** او که محصورې وي.بلکه ددې دپاره څو شرائط سته. او هغه آته او لاندي ذکر کیږي.

[1] : **د موضوع وحدت او یو والي:** ددواړو قضیو موضوع به یوه وی، ځکه که چیري ددواړو موضوع یوه نه وی نو بیا تناقض نه راځي، ځکه هغه دواړي ربښتیااو درو غجني کیدای سي.

**مثال:** "زید قائم" "عمر و لیس بقائم". ددوي په ما بین کي د تناقض د نه موجود والي وجه نه یو والي د موضوع دی.

۲: **یو والي د محمول:** ددواړو قضیو محمول به یوه وی ځکه که چیري ددواړو محمول یو نه وی نو بیا تناقض نه راځي ځکه هغه دواړي رښتیا او دروغجني کېدای سي.

**مثال:** "زید قائم."زید لیس بضاحک".اوس د محمول د نه یو والي په خاطر ددوی په مابین کي تناقض نسته.

۳: **د شرط او د قید یو والي:** دواړي قضیې به د شرط او قید په اعتبار سره یو وی ځکه که چیري شرط یي یو نه وو،نوبیا تناقض نه راځي ځکه هغه دواړي رښتیا او دروغجني کیدای سي.

**مثال:** "الجسم مفرق للبصر. بشرط کونه ابیض" په جسم په دې شرط سره سترګي بریښي چي دی سپین دی"الجسم لیس بمفرق للبصر بشرط کونه اسود"په جسم سترګي په دی شرط سره نه بریښي چي دی تور دی.اوس د شرط د مختلف والي ﴿سپین والي او تور والي﴾ د وجي ددوی په مابین کي اختلاف نسته.

۴: **د کل او جزء یووالي:** دواړي قضیې به د کل او جزء په اعتبار سره یو وی.که چیري په یوه کي حکم په کل یا په جزء وی نو په هغه بله کي به هم حکم په کل یا په جزء وی. ځکه که چیري داډول نه وو نو بیا تناقض نه راځي ځکه هغه دواړي رښتیا او دروغجني کیدای سي.

**مثال:** "الزنجی اسود.أی بعضه.زنجي تور دي یعني ددو ی څخه بعض."الزنجی لیس باسود ای کله" زنجي تور نه دي یعني هغه ټوله.اوس په یوه کي حکم په کل او په بله کي حکم په جزء باندي د کېدو د وجي ددوی په مابین کي تناقض نسته.

۵: **د زماني یو والي:** دواړي قضیې به د زماني په اعتبار سره یو وی ځکه که چیري زمانه یوه نه وی نو بیا تناقض نه راځي ځکه هغه دواړي رښتیا او دروغجني کېدای سي.

**مثال:** "زید قائم نهارا"زید د ورځي ولاړ دی."زید لیس بقائم لیلا"زید د شپې ولاړ نه دی.اوس د زماني د مختلف والي ﴿ورځ او شپه﴾ د وجي ددوی په مابین کي تناقض نسته.

۶: **یو والي د مکان:** دواړي قضیې به د مکان په اعتبار سره یو وی ځکه که چیري مکان یو نه وی نو بیا تناقض نه راځي ځکه هغه دواړي رښتیا او دروغجني کیدای سي.

**مثال:** "زيدجالس فی الدار"زيد په کور کي ناست دی."زيد ليس بجالس فی السوق"زيد په بازار کي ناست نه دی.اوس دمکان د مختلف والي﴿کوراو بازار﴾ د وجي ددوی په مابين کي تناقض نسته .

۷: **يووالي د اضافت:** دواړي قضيې به داضافت او نسبت په اعتبار سره يو وی څکه که چيري نسبت يو نه وی نو بيا تناقض نه راځي څکه هغه دواړي رښتيا او دروغجني کيدای سي.

**مثال:** "زيد اب لعمر" زيد دعمر پلار دی. "زيد ليس باب البکر" زيد د بکر پلار نه دی.اوس دنسبت او اضافت د مختلف والي﴿نسبت و عمر او په بله کي و بکرته سوی دی﴾ د وجي ددوی په مابين کي اختلاف نسته .

۸: **دقوت او فعل يووالي:** دواړي قضيې به دقوت او فعل په اعتبار سره يو وی څکه که چيري په يوه کي حکم بالقوه او په هغه بل کي بالفعل وی نو بيا تناقض نه راځي څکه هغه دواړي رښتيا او دروغجني کيدای سي.

**مثال:** "الخمر مسکر فی الدن ای بالقوه."دمنګي شراب بالقوه نشه راوستونکي دی"الخمر ليس بمسکر فی الدن ای بالفعل"په منګي کي شراب بالفعل نشه راوستونکي نه دی.اوس دقوت او د فعل د مختلف والي﴿بالفعل بالقوه﴾ د وجي ددوی په مابين کي اختلاف نسته.

## خلاصه حواشي ايوبي

**سوال:** هر تعريف په جنس او فصل باندي مشتمل وي نو دلته جنس او فصل څه دي؟

**جواب:** د مصنف دغه قول "الاختلاف" جنس او شامل هغه اختلاف ته دی چي هغه د قضيو، د مفردينو، د قضيه او دمفرد ترمينځ وی.او د مصنف دغه قول "قضيتين" فصل دی، په دې سره هغه اختلاف ووتي چي هغه د قضيو ترمينځ نه وي. او د مصنف دغه قول " بالايجاب و السلب" فصل دی، او په دغه سره هغه اختلاف وزی چي هغه په اعتبار د اتصال او انفصال ، کليت او جزئيت، تحصيل او د عدول وي. او د مصنف دغه قول "بحيث يقتضی" فصل په دغه سره هغه اختلاف وزی چي په ايجاب او سلب سره وی، مګر تقاضی د يوې قضيه د صادقوالي او د هغه بلي د درواغوالي نه کوي. د مثال په توګه " زيد ساکن دی". او " زيد متحرک نه دی". او د مصنف دغه قول "لذاته" فصل په دغه سره هغه اختلاف وزی چي هغه په ايجاب او سلب سره

وي، او تقاضى د يوې د صادق والي او د هغه بلي د درواغوالي كوي، مګر په اعتبار سره د ذات نه وي. بلكه په اعتبار د يو خاص مثال او ماده وى. لكه په يوې قضيه كي ايجاب او په هغه بلي قضيه كي سلب دده د هغه لازم وى چي هغه دده سره مساوى وي. د مثال په توګه " زيد انسان" . "زيد ليس بناطق". نو اوس " زيد انسان" د "زيد ليس بناطق" سره مختلف او دغه اختلاف په اعتبار د ايجاب او د سلب دى، او دغه د يوې د صادق والي او دهغه بلي د درواغ والي تقاضى كوي. مګر دغه تقاضى په اعتبار د ذات ددغه اختلاف نه ده، بلكه په واسطه د لازم مساوي وى. ځكه ناطق د انسان سره مساوي دي. ددغه وجي د ناطق په نفي كولو سره نفي د انسان راځي. او بالعكس. لهذا زيد انسان په قوت كي د زيد ناطق دى. ګواكي په حقيقت كي دا ډول ده " زيد ناطق ، زيد ليس بناطق.لهذا دلته دغه اختلاف د مساوي شي " ناطق" په واسطه سره ددغه خبري تقاضى كوي چي چي يوه قضيه صادق او هغه بله كاذبه ده. او دغه تناقض نه دى. ځكه په تناقض كي هغه اختلاف معتبر دى چي هغه د يوې د صادقوالي او د هغه بلي د كاذب والي په اعتبار د ذات تقاضى كوي.

فقد جمع هذه الشرائط: بعضو شاعرانو دغه آته شرطونه د تناقض په دغه راتلونكو بيتونو كي يو ځاى كړي دي.

په تناقض كي آته اتحاده شرط بوله ○ يو والي د موضوع ، محمول، مكان.

وحدت د شرط ، اضافت ،جزء او كل ○ قوت او فعل دى بل وحت زمان بوله.

افول النسخ القديمة شاهدة : دغه قيد په اصل نسخه كي وجود نه لرى، بلكه دغه د كاتبوانو د قلم تېروتنه ده.

**سوال:** پر دغه تېروتني څه دليل وجود لرى؟

**جواب:** دليل دادى چي تناقض محل كوم خاص قسم د قضيه نه دى، بلكه دغه په دغه ذكر سوى شرطونو سره عام دى شامله و مخصوصه او محصورې دواړو ته دى،البته په محصوراتو كي د تناقض د وجود دپاره يو زائد شرط پر دغه ذكر سوى شرطونو وجود لرى، او هغه شرط دادى چي ددوى تر مينځ به اختلاف په اعتبار د كليت او جزئيت وى. انشاء الله دې تفصيل راتلونكي دى.

## عبارت

فَنَقِيضُ المُوجَبَةِ الْكُلِّيَّةِ إِنَمَا هِيَ السَّالِبَةُ الجُزْئِيَّةُ. كَقَوْلِنَا كُلُّ إِنْسَانٍ حَيَوانٌ، وَبَعْضُ الْإِنْسَانِ لَيْسَ بِحَيَوانٍ.وَنَقِيضُ السَّالِبَةِ الْكُلِّيَّةِ إِنَّمَا هِيَ المُوجَبَةُ. كَقَوْلِنَا: لاَ شَيْءَ مِنَ الْإِنْسَانِ بِحَيَوانٍ، وَبَعْضُ الْإِنْسَانِ حَيَوانٌ .

## ترجمه

د موجبه کلیه نقیض سالبه جزئیه راځي. لکه زموږ دا قول "هر انسان حیوان دی". او "بعض د انسانانو څخه بیا حیوان نه دی". او د سالبه کلیه نقیض موجبه جزئیه راځي. لکه زموږ دا قول "یو هم د انسان څخه حیوان نه دی". او "بعض د انسانانو څخه حیوان دی".

## تشریح

په قضیه محصوره کي حکم پر افرادو سوی وی. که چیری په یوه قضیه کي حکم پر ټولو افرادو د موضوع سوی وی، نو ددغه د مخالفت لپاره دومره کفایت کوی چي ددغه موضوع د بعضو افرادو څخه دغه حکم نفي سي. د مثال په توګه که چیری وویل سي چي "هر انسان کاتب دی"، نو ددغه قضیه د صداقت لپاره دا ضروری ده چي د انسان ټوله افراد به کاتبان وی، او که چیری یو فرد د افرادو څخه د انسان کاتب نسي نو بیا دغه "هر انسان کاتب دی" کاذبه ګرزی، په دغه وجه که چیری یو کس ددغه قضیه په مقابل کي ووایي "بعض د انسان څخه کاتبان نه دي"، نو دغه قول د اول قول مقابل دی. او دغه دواړه قولونه صادق یا کاذب کېدای نسي ، دغه ډول که چیری حکم بعضو افرادو ته ثابت سوی وی، یا د بعضو څخه نفي سوی وی، نو ددغه د مخالفت لپاره ضروری ده چي د ټولو افرادو څخه حکم نفي سي او یا و هغو ته ثابته و ګرزول سي. ځکه د بعضو افرادو مخالفت په بعضو نورو سره وسي نو بیا تناقض نه ثابتیږی. نو دواړی قضیې به رښتیوني وي، د مثال په توګه "بعض د حیوان څخه انسان دي"، او "بعض د حیوان څخه انسان نه دی"، لهذا دغه دواړی قضیې رښتیوني دی، او حال دا چي د تناقض دپاره دا ضروری ده چي یوه د قضیو څخه صادقه او هغه بله کاذبه وی. په دغه وجه د موجبه کلیه نقیض سالبه جزئیه راځي، او د سالبه کلیه نقیض موجبه جزئیه

راځي. او ددغه څخه معلومه سوه چي د سالبه جزئيه نقيض موجبه کليه راځي ، او د موجبه جزئيه نقيض سالبه کليه راځي.

خلاصه حواشي ايوبي

علامه فرمايي چي دغه قول د مصنف " فنقيض الموجبة الكلية "په اصل کي ورسته تر دې قول "و المحصورتان لا يتحقق الخ" دی، ځکه موجبه کليه او جزئيه اقسام د محصوره دی، نو اقسام بايد ورسته تر مقسم راوړل سي، نو اوس دغه راوړل مخکي تر مقسم دغه د کاتبانو تېروتنه ده.

## عبارت

وَالمَحْصُورتَانِ لاَ يَتَحَقَّقُ التَّنَاقُضُ بَيْنَهُمَا إلاَّ بَعْدَ اخْتِلاَفِهِمَا فِي الْكُلِيَّةِ وَ الجُزْئِيَّةِ، لِأَنَّ الْكُلِّيَّتَيْنِ قَدْ تَكْذِبَانِ. كَقَوْلِنَا كُلُّ إِنْسَانٍ كَاتِبٌ، وَلاَ شَيْءَ مِنَ الْإِنْسَانِ بِكَاتِبٍ . وَالجُزْئِيَّتَيْنِ قَدْ تَصْدُقَانِ. كَقَوْلِنَا: بَعْضُ الْإِنْسَانِ كَاتِبٌ، وَبَعْضُ الْإِنْسَانِ لَيْسَ بِكَاتِبٍ.

## ترجمه

په دو محصورو قضيو کي تر هغه پوری تناقض راتلای نسي تر څو پوری دوی په کليت او جزئيت کي سره مختلفي نه وی. ځکه دوې کلي محصورې قضيې کله دروغجني وي لکه زموږ دا قول "هر انسان کاتب دی"، او "يو فرد د انسان کاتب نه دی". او داسي دوې قضيې چي جزئي وي کله رښتيوني وي ، لکه زموږ دا قول " بعض د انسان څخه بالفعل کاتب دي"، او " بعض د انسان څخه بالفعل کاتب نه دی".

## تشريح

څه وخت ددو محصورو ترمينځ دتناقض دراتګ دپاره د مخکني آتو شرائطو سره سره يو بل شرط هم سته، هغه شرط دادی چي دواړي قضيې به په کميت ﴿ چي کليت او جزئيت دی﴾ کي مختلفي وي داډول که يوه کلي وی نو هغه بله به جزئي وي، ځکه که چيري دواړی کلي يا جزئي وي نو بياتناقض نه راځي. ځکه د دواړي کليو درواغ والي او د دواړو جزئيو رښتيا والي په هغه مثال کي کېدای سي چي په هغه کي موضوع عام تر محمول وی.د مثال په توګه"هر حيوان انسان دی". "دحيوان يو فرد انسان نه دی". اوس دغه دواړه کليې دي مګر

دواړي درواغ دي.او جزئيې د مثال په توګه "بعض حيوان انسان دی.بعض حيوان انسان نه دی". اوس دغه دواړي قضيې صحی دی.

**سوال:** ددغه دواړي جزئيو رښتياوالي او عدمي تناقض ددې وجي څخه نه دی چي په دوی کي اختلاف د کميت نسته. بلکه په وې وجه سره دی چي په دوی کي يو والئ د موضوع نسته. ځکه د حيوان په کوم افرادو باندي چي په حيوانيت سره حکم سوي دی په هغو باندي حکم په نه انسانيت سره نسي کيدای. بلکه په هغه نورو افرادو باندي دی چي هغه سيوا د هغه اولو څخه دي.اوس.که چيري موضوع ددوی يوه سي نو بيا ددوی په ما بين کي تناقض راځي؟لهذا رښتيا والي او عدم تناقض د وجي د موضوع د مختلف والي دی نه د کميت د يو والي د وجي؟

**جواب:** په قضيه کي دوه شيان دي.

۱ : **ذات موضوع:** هغه افراد چي په هغو باندي په خارج کي موضوع صادقيږي. د مثال په توګه " كل انسان حيوان"اوس انسان په خارج کي په زيد او عمر باندي صادقيږي .او دغه زيد ،او عمر ذات د موضوع دی.

۲ :**موضوع فی الذکر:** هرهغه لفظ چي د موضوع د ذات څخه په هغه سره تعبير کول کيږي. په تير سوي مثال کي لفظ د انسان دی.اوس خلاصه د جواب داده چي په ټولو احکامو کی مفهوم د قضيې معتبريږی﴿ ددې وجي که چيري د جزئيو د مفهومو لحاظ وسي چي هغه ثبوت د بعضو افرادو او سلب د نورو بعضو افرادو دی نو بيا ددوی په مابين کي تناقض نه راځي.ددغه وجي ددوی په مابين کي د تناقض د راتلو دپاره د يو بل شي زياتوالي شرط سو چي هغه جلا والي په کميت کي دی﴾. لهذا که چيري يوه قضيه موجبه کليه وی نو هغه بله به سالبه جزئيه وي.او که چيري يوه موجبه جزئيه وی نو هغه بله به سالبه کليه وی.او د موجبه جزئيه نقيض سالبه کليه ده).

خلاصه حواشي ايوبي

په دو محصورو قضيو کي د تناقض د راتلو دپاره يو بل شرط وجود لری چي هغه دادی چي

ددوی تر مینځ به په کلیت او جزئیت کي اختلاف وی. ددغه شرط د ښوولو دپاره مصنف و فرمایل "و المحصورتان".

د محصورو تر مینځ به هلته تناقض راځي چي یوه ددوی څخه کلي او هغه بله جزئي وی. که چیری دواړی جزئي وي نو بیا ددوی تر مینځ تناقض وجود نه لری، ځکه په دغه صورت کي ددې احتمال وی چي دغه دواړي قضیې دي رښتیوني وي. او دغه ډول که چیری دغه دواړی قضیې کلي وي نو بیا هم ددوی تر مینځ تناقض وجود نه لری، ځکه دلته هم د دواړود دروغجنوالي احتمال وجود لری.

ای في الواقع فان القضیتین: په تناقض کي د محصورو که چیری جزئیت کافي سي داډول چي دواړی جزئیه وی نو دغه هلته صحت لری چي یو مثال به هم داسي نه وی چي دوې جزئیې محصورې دی د واقع او نفس الامر په اعتبار سره یو ځای کیږی (سره د مخکني شرائطو د تناقض).

اوس که چیری موږ دا معلومول غواړو چي دوو محصورو تر مینځ د تناقض د راتګ لپاره جزئي والي کافي دی، نو باید موږ وګرو چي کومي داسي دوې محصورې جزئې خو به نه وی چي په واقع کي دواړي رښتیوني وي، نو داسي محصورې جزئې وجود لری چي په هغه کي د تناقض پاسني شرائط وجود لری خو بیا هم دواړي رښتیوني دي لکه زموږ دا وینا "بعض الانسان کاتب"، او "بعض الانسان لیس بکاتب" دواړي جزئیه محصوره دي، او دواړی په واقع کي رښتیوني دي، ځکه بالفعل بعض انسانان کاتبان او بعض بیا نه وي. نو معلومه سوه چي د تناقض لپاره جزئیت په محصورو کي کافي او شرط نه دی بلکه اختلاف د کلیت او جزئیت شرط دی.

## عبارت

اَلْعَكْسُ: هُوَ أَنْ يَصِيرَ الْمَوْضُوعُ مَحْمُولاً .وَالْمَحْمُولُ مَوْضُوعًا مَعَ بَقَاءِ السَّلْبِ .وَالْإِيجَابِ بِحَالِهِ وَالتَّصْدِيقِ وَالتَّكْذِيبِ بِحَالِهِ، وَالْمُوجَبَةُ الْكُلِّيَّةُ لاَ تَنْعَكِسُ كُلِّيَّةً إِذْ يَصْدُقُ قَوْلُنَا :كُلُّ إِنْسَانٍ حَيْوَانٌ .وَلاَ يَصْدُقُ كُلُّ حَيْوَانٌ إِنْسَانٌ بَل تَنْعَكِسُ جُزْئِيَّةً لِأَنَّنَا إِذَا اقُلْنَا: كُلُّ إِنْسَانٍ حَيَوَانٌ يَصْدُقُ بَعْضُ الْحَيَوَانِ إِنْسَانٌ، فَإِنَّا نَجِدُ شَيْئًا مَوْصُوفًا بِالْإِنْسَانِ وَالْحَيَوَانِ فَيَكُونُ بَعْضُ الْحَيَوَانِ إِنْسَانًا.

## ترجمه

عکس هغه قضیه ده کومه چي د موضوع په محمول او د محمول په موضوع بدلولو سره حاصلیږي. سره د دې چي سلب او ایجاب او رښتیاوالي او دروغ والي په خپل حال پاته وی. د موجبه کلیه عکس کلیه نه راځي. ځکه زموږ دا قول هر انسان حیوان دی رښتیوني دی. مګر هر حیوان انسان دی رښتیوني نه دی، بلکه عکس ددې جزئیه راځي. ځکه څه وخت چي موږ ووایو: هر انسان حیوان دی، او بعض حیوان انسان دي. ځکه موږ یو شي په انسان او حیوان دواړو سره موصوفه پیدا کوو، نو بعض حیوان انسانان و ګرزېدل.

## تشریح

**عکس په لغت کي بدلولو ته ویل کیږي، او په اصطلاح کې ددغه اطلاق پر دو معناګانو کیږي.**

**(۱): ګرځول د محمول موضوع او د موضوع محمول.**

**(۲): هغه قضیه چي حاصله وروسته تر بدلولو سي.**

**سوال: د عکس اطلاق پر دغه دواړو معناګانو باندي څه حیثیت لري؟**

**جواب:** اصل حقیقت دا دي چي عکس په لغت و دې ته ویل کیږی چي دیو شي آخر اول و ګرزول سي.﴿ قاموس﴾ بیا دغه لفظ ددغه معني څخه و دې معني ته رانقل سو "محمول په موضوع او موضوع په محمول سره بدلول". او دغه مسمي کولو د خاص په نامه سره د عام د قبیلې څخه دی.او بیا لفظ د عکس مجازاً پر دې معني یي اطلاق و سو "هر هغه قضیه چي به

دغه بدلولو سره حاصله سي" ، ځکه دغه بدلول سبب ددغه قضيه دحاصلېدولو دی.بيا عکس په دغه معني کي دومره استعمال سو چي په دغه کي يې استعمال حقيقت و ګرزيدی.

**سوال:** ددغه تعريف يو څه وضاحت وکړه؟

**جواب:** د سلب او ايجاب د پاته کېدو مطلب دادی: که چيري اصل موجبه وه نو عکس به هم موجبه وی.او که چيري اصل سالبه وی نو عکس به هم سالبه وی.او د صدق او کذب د پاته کېدومطلب دادی: که چيري اصل صادق وی نو عکس به هم صادق وی.د مثال په توګه "کل انسان حيوان" اوس موږ ددغه عکس جوړول غواړو نو موږ موضوع "انسان" محمول او محمول "حيوان" موضوع جوړه کړو.او ووايو "بعض الحيوان انسان" .او څه وخت چي موږ ددې "لاشی من الانسان بحجر" عکس جوړول وغواړو نو بيا به موږ داډول وايو "لاشی من الحجر بانسان".

**سوال:** په عکس کي دا خبره ولي شرط سوه چي که چيري اصل صادق حقيقتا يا صادق فرضا وي نو عکس به هم صادق وي؟

**جواب:** ځکه عکس د لوازمو څخه د قضيه يو خاص لازم دی.او د ملزوم رښتيا والي بېله رښتيا والي د لازم نسي کيدای. ددغه وجي يي دغه شرط و ګرزوی.

**سوال:** منطقينو د کذب پاته والي ولي شرط نه کړي داډول که چيري اصل درواغ وی نو عکس به هم درواغ وی؟

**جواب:** ځکه د ملزوم د درواغ والي څخه د لازم درواغ والي نه لازميږي.ځکه داډول کېدای سي چي ملزوم "اصل قضيه" درواغ او لازم" عکس" رښتيا وی.د مثال په توګه "هر حيوان انسان دی".او دغه درواغ دی.مګرددغه عکس رښتيا دی"بعض انسانان حيوان دي" قطع نظر د نورو انسانانو څخه چي هغوی حيوانا ن دي او که نه دي.لهذا د عکس په تعريف کي د درواغ باقي پاته کيدنه شرط نه کړل سوه.

**خلاصه حواشي ايوبي**

عکس دوه قسمه لري.۱: عکس مستوی د کوم تعريف مخکي تېر سو.

۲: عکس نقيض، ددې په تعريف کي اختلاف تر سره سوی دی،

**متقدمین حضرات:** نقیض د موضوع محمول و گرزول سي، او نقیض د محمول موضوع و گرزول سي. ایجاب او سلب باقي پاته وی او داډول صدق هم پر خپل ځای پاته وی.

**مثال:** "کل انسان حیوان " یعني هر انسان حیوان دی. اوس ددغه جمله عکس نقیض جوړول دی نو اوس دلته یو طرف "انسان" دی او هغه بل طرف "حیوان" دی، نو د موضوع نقیض چي "لا انسان " دی هغه محمول و گرزول سي، او د محمول نقیض "لاحیوان" دی هغه موضوع و گرزول سي، نو د "کل انسان حیوان" عکس داډول و گرزېدی " کل لاحیوان لاانسان".

**متاخرین:** موضوع محمول و گرزول سي، او د محمول نقیض د موضوع محمول و گرزول سي، او ددغه سره سره په ایجاب او سلب کي اصل او عکس سره مختلف وی مگر صدق پر خپل ځای پاته وی.

**مثال:** " کل انسان حیوان"، اوس یو طرف "انسان" او بل طرف "حیوان" دی، موضوع بعینه محمول و گرزېدل، او د نقیض د محمول "لاحیوان" موضوع و گرزول سو، نو قضیه داډول سوه "کل لاحیوان لیس بانسان"، یعني نه حیوان انسان کېدای نسي.

**سوال:** تقریر د سوال دادی چي تعریف دعکس جامع نه سو. ځکه ذات د انسان موضوع ده مثلا. او محمول مفهوم د حیوان دی مثلا، او په عکس کي مفهوم د حیوان ذات د انسان نه کیږي بلکي ذات د حیوان موضوع او دغه ډول ذات د انسان محمول کېدلای نه سي بلکي مفهوم د انسان محمول کیږي نو احد طرفی مکان آخر نه سو؟

**جواب:** مراد د طرفین څخه طرفین په ذکر او عنوان کي دي نو اوس اعتراض نه واردیږي. ځکه یو طرف په مثال مذکور کي [ کل انسان حیوان] لفظ د انسان ؤ دغه طرف محمول په عکس کي دی او هغه بل طرف په ذکر کي لفظ د حیوان دی اوس موضوع په عکس کي ده. نو خلاصه د تعریف داسوه چي گرزول د محمول عنوان د موضوع او عنوان د موضوع محمول دی سره د بقاء د صدق.[ کذافی بحر العلوم صفحه نمبر ۲۰۴ ]

مؤجبات کلي او که جزئي وي د هغو عکس کلي نه راځي، بلکه عکس یي محض جزئي راځي، ځکه د مؤجبه کلیه عکس که چیري کلیه سي نو بیا دغه به په هر ماده او مثال کي

صادقيږي. ځکه د قضيه عکس په هره ماده کي چي هم وی د اصل قضيه سره لازم وی. او حال داچي د مؤجبه کليه عکس مؤجبه کليه صادق کېدنه په هرځای کي نه راځي، ځکه په کومو مثالو کي محمول عام او موضوع خاص وی په هغه کي د کليه عکس کليه نه راځي. ځکه د عکس کولو ورسته موضوع عام او محمول خاص وګرزي. نو حمل د خاص په ټولو افرادو باندي د عام راځي، او دغه صحی نه ده. د مثال په توګه "هر انسان حيوان دی". اوس د دغه عکس دا دي "هر فرد د حيوان انسان دی". لهذا اصل رښتيا او عکس دروغ دی. او دغه باطل دی. او هغه اصل چي رښتيا وی د هغه عکس هم رښتيا وی. او د دغه کليه عکس هلته رښتيا کيږي چي عکس يي جزئي او داډول و ګرزول سي "بعض د حيوان څخه انسان دي". نو دا خبره ثابته سوه چي د مؤجبه کليه عکس جزئيه وي.

**سوال:** په عبارت کي د "الکذب" لفظ راړل صحت نه لري، ځکه د اصل د کاذبوالي او دروغجن کېدلو څخه دا لازمه نه ده چي د دغه عکس به هم کاذبه وی، ځکه داسي کيږی چي اصل دي کاذب وی مګر عکس دې کاذبه نه وی، د مثال په توګه "کل حيوان انسان" کاذب دی، مګر د دغه عکس " بعض الانسان حيوان " صادقه دی، نو که چيری د اصل د کذب څخه د عکس کذب لازموای نو بيا به د "الکذب" ويل صحت لرلي وای؟

**جواب:** خبر هم دغه ستا صحی ده، مګر دلته دغه راوړل د کاتب څخه خطاء تر سره سوېده. بعضو علماؤ چي په کومو نسخو کي دغه لفظ نه وو وراضافه کړی دی او دغه صحت نه لری، ځکه علامه تفتازاني رحمه الله فرمايي : که چيری اصل صادق وو نو عکس به صادقه وی، او که چيری عکس کاذبه وی نو اصل به کاذبه وی. او داډول نه ده چي کذب د اصل مستلزم کذب لره د عکس دی. يا د مصنف د قول مطلب دادی چي په عکس کي به مجموعه د صدق او کذب پاته وی. او دا قاعده ده چي د مجموعې په صورت کي د مجموعې د هر هر فرد رښتياوالي ضروری نه وی. بلکه د يوه فرد په صدق سره هم مجموعه صادقه ګرزی، نو دلته د صدق بقاء شرط ده نه د کذب. څرنګه دغه بقاء د صدق يو فرد د دغه مجموعه دی، د فرد په صدق سره د مجموعه صدق راځي نو د دغه فرد په صدق سره مجموعه صادقه و ګرزېدله.

قوله بل آه: بدانکه صدق اصل را الخ: د صدق سره د اصل صدق د عکس لازم دی، ځکه عکس لازم د اصل سره وی. نو اصل ملزوم او عکس لازم دی، او د صدق سره د ملزوم صدق د لازم، لازم دی. او د کذب سره د اصل کذب د ملزوم لازم نه دی. ځکه د ملزوم په کذب سره د لازم کذب راتلل لازم نه دی. ځکه کله کله داسي وی چي لازم عام ترملزوم وی. او په کذب سره د خاص کذب د عام راتلل لازم نه وی، نو کذب د ملزوم کذب لره د لازم، لازم نه دی. د مثال په توګه یو کس داسي وینا وکړی "لو کان هذا الشيء انسانا کان حیواناً لکنه لیس بانسانٍ" یعني که چیری دغه شي انسان وی نو حیوان به وی، مګر دغه انسان نه دی، نو اوس ددې سره دا لازمه نه ده چي دغه شي به حیوان هم نه وی، نو دا خبره ثابته سوه چي د نفي او کذب سره د خاص نفي او کذب د عام راتلل لازم نه دی.

**سوال:** آیا د قضایاؤ منفصله او اتفاقیه خاصو عکس راځي؟

**جواب:** عکس یې راتلای سي ، مګر ګټور نه دی. ځکه په دغه دواړو صورتونو کي عکس کومه نوې فائده نه ورکوی. بلکه کوم څه چي اصل فائده کوی هم هغه شي ددوی عکس فائده کوی. د مثال په توګه " العدد اما زوج او فرد". نو عکس به ددغه "العدد اما فرد او زوج" به راسي، ددې او د اصل ترمینځ کوم فرق وجود نه لری، او دغه ډول که وویل سي " ان کان الانسان ناطقاً کان الحمارُ ناهقاً". اوس که ددې عکس جوړ سي نو داسي به وویل سي " ان کان الحمارُ ناهقاً کان الانسانُ ناطقاً". اوس کومه فائده چي اصل ورکول هم هغه فائده یې عکس ورکوی.

**سوال:** اتفاقیه عامه چي مرکبه د مقدم محال او تالي صادقه څخه وی ددغه عکس راتلای سي؟

**جواب:** نه دغه نسي راتلای، ترکیب ددوی د مقدم محال او تالي صادقه څخه روا ښنت نه لری، د مثال په توګه "لو کان لاشيء موجوداً کان الانسان ناطقاً" یعني که چیری "لاشي" موجوده سي نو انسان به ناطقه وی. اوس دلته د "لاشيء" موجودوالي محاله دی، ځکه د "لاشيء" نقیض چي "شيء" دی په خارج کي وجود لری، لهذا مقدم محاله او تالي "د انسان ناطقیت" صادقه دی. اوس ددغه عکس روا نه دی ، او عکس به یې داډول مرکبیږی " لو کان انسان ناطقاً کان لاشيء موجوداً" یعني که چیری انسان ناطق سي نو لاشي به موجود سي، لهذا د "انسان د

ناطقيت " د صدق په صورت کي به د "لاشي" موجوديت لازم سي، او حال دا چي د "لاشيء" موجودوالي کاذبه دی. نو دا خبره معلومه سوه چي عکس کاذبه دی، نو دلته اصل صادقه او عکس کاذبه سو، او داسي عکس صحی نه دی چي اصل يې صادقه او دی کاذبه وی، ځکه په عکس کي دا شرط وجود لری چي صدق به باقي په عکس کي وی کوم چي دلته نسته.

**سوال:** د اصل په کذب سره کذب د عکس لازم وی؟

**جواب:** نه، دغه لازم نه دی. د مثال په توګه که وويل سي "کل حيوان انسان " يعني هر حيوان انسان دی، اوس دغه خبره کاذبه ده،او عکس ددې " بعض انسان حيوان" دی يعني بعض انسان حيوان دی، او دغه صادق دی، نو اصل کاذب او عکس صادق دی.

**سوال:** "مع بقاء الصدق" په څه معني سره دی، يعني که اصل صادق وی نو عکس به يې هم صادقه وی، ددې څه مطلب دی؟

**جواب:** ددې مطلب دا نه دی چي اصل په واقع او حقيقت کي صادقه وی نو عکس به يې هم په واقع کي صادقه وی. بلکه د صدق معنی دا ده چي کوم شي صادق و بلل سي نو عکس به يې هم صادقه بلل کيږی. نو اوس تعريف د عکس و قضاياؤ کاذبو ته هم شامله سو. ځکه کوم کس چي " کل حمار فرس" صادقه بولي نو هغه دا هم صادقه بولي "بعض فرس حمار".

**سوال:** موجبه کليه عکس ولي موجبه کليه راتلای نسي؟

**جواب:** ځکه د قضيه د لوازمو څخه يو لازم د هغه قضيه عکس وی. او لازم د شي هر وخت وی او تر يو ځای پوری خاص نه وی، نو که عکس د موجبه کليه موجبه کليه سي نو په هره موجبه کليه کي به دغه ډول وی، او حال دا چي دا ډول نه ده، ځکه په کومه قضيه کي چي موضوع خاص او محمول عام وی، لکه "کل انسان حيوان" نو عکس ددې کليه صادقېدای نسي، "کل حيوان انسان". او په بعض ځايونه بيا راځي هغه وخت چي موضوع او محمول سره برابر وی لکه "کل انسان ناطق" " کل ناطق انسان" اوس دغه دواړه صادق دي. او دغه ډول که چيری موضوع عامه او محمول خاص وی نو بيا يې هم عکس کليه راتلای سي لکه "کل حيوان انسان" اوس دغه کاذبه ده مګر عکس يې راتلای سي " کل انسان حيوان". او دغه صادقه

ده، او په عکس کي بقاء د کذب لازمه ده    یعني که اصل کاذب وی نو عکس به هم کاذب وی دغه ډول نه ده. لهذا دا معلومه سوه چي هر ځای کي د موجبه کلیه عکس موجبه کلیه نسي راتلای نو معلومه سوه چي دغه عکس په صورت کي د موجبه کلیه لازم د موجبه کلیه سره نسو، کوم چي لازم نه وی هغه عکس نه وی، نو د موجبه کلیه عکس موجبه کلیه نه راځي.

**﴿فائده﴾**: څه وخت چي د یو شي عکس بیانیږي نو ددغه دری طریقي وي.

**اول: افتراض**: هرهغه دلیل چي په هغه کي ذات دموضوع یو معین شي فرضول. او د عکس د مفهوم دحاصلولو په خاطر په ده باندي وصف د موضوع او د محمول حمل کولو ته افتراض ویل کیږي. د مثال په توګه څه وخت چي مؤجبه کلیه صادق سي "کل انسان حیوان" نو موږ ذات د موضوع "چي افراد د انسان دي" په حیوان او انسان سره موصوفه پیدا کړو. داډول "کل فرد من افراد الانسان حیوان" "و کل فرد من افراد الانسان انسان". نو ددغه نتیجه د شکل ثالث مطابق دا راځي "بعض الحیوان انسان". او دغه زموږ مقصد دی.

**دوم: عکس**: د اصل د نقیض د حاصلولو په خاطر دعکس د نقیض عکس کولو ته دلیل عکس ویل کیږي. د مثال په توګه د "کل انسان حیوان" عکس "بعض الحیوان انسان" دی. او س که چیري "دغه بعض الحیوان انسان" نه سي. نو ددغه "بعض الحیوان انسان" نقیض چي سالبه کلیه ده "لا شی من لحیوان بانسان" به صادقه سي " ځکه که چیري صادق نه سي نو یو شي به د نقیضو څخه خالي پاته سي او دغه صحی نه دی". او څه وخت چي سالبه کلیه صادقه سي نو ددې عکس به هم صادق سي "ځکه د عکس صادقېدل په تقدیر د اصل دصادقېدو داصل دلوازمو څخه وی". اودغه "لا شی من الانسان بحیوان" دی. او دده "بعض الحیوان بانسان" د نقیض " لا شی من الحیوان بانسان" د عکس "لا شی من الانسان بحیوان" صادق کېدنه باطل دی. ځکه انسان اودحیوان په ما بین کي منافات راغلي. او دغه منافات راتلل باطل دی. نو نتیجه داسوه چي مؤجبه جزئیه عکس د مؤجبه کلیه دی.

**دریم: خلف**: د عکس نقیض د اصل سره ددې لپاره ضمول چي سلب د شي د ځان څخه راسي. د مثال په توګه د "کل انسان حیوان" د صادق کېدو ورسته مؤجبه جزئیه "بعض الحیوان انسان" به

صادقه سي.ځکه که چیري دغه صادقه نه سي نو د موجبه جزئیه نقیض "لا شی من الحیوان بانسان" به صادق سي.او څه وخت چي نقیض یې صادقه سي نو دده یو ځای والي د اصل "کل انسان حیوان" سره روا وی.نو نتیجه دا سوه چي څه وخت مؤجبه جزئیه صادق نه سي نو دده د نقیض ضمول د اصل سره روا وی دا ډول "کل انسان حیوان .و لا شی من الحیوان بانسان" نو نتیجه به دا سي" لا شی من الانسان بانسان"، مګر دده ضمول د اصل سره روا نه دی ځکه د دغه ضمیډ ولو د وجي محال"د شي نفي کول د خپل ځان څخه "راځي. نو دا ثابته سوه چي موجبه جزئیه به صادقه کیږي.

## عبارت

وَالمُوجَبَةُ الجُزْئِيَّةُ أَيْضًا تَنْعَكِسُ جُزْئِيَّةً بِهٰذِهِ الحُجَّةِ. وَالسَّالِبَةُ الْكُلِّيَّةُ تَنْعَكِسُ سَالِبَةً كُلِّيَّةً، وَذٰلِكَ بَيِّنٌ بِنَفْسِهِ لِأَنَّهُ إِذَا صَدَقَ لاَ شَيْءَ مِنَ الْإِنْسَانِ بِحَجَرٍ، صَدَقَ لاَ شَيْءَ مِنَ الحَجَرِ بِإِنْسَانٍ .وَالسَّالِبَةُ الجُزْئِيَّةُ لاَ عَكْسَ لَهَا لُزُومًا، فَإِنَّهُ يَصْدُقُ بَعْضُ الحَيَوَانِ لَيْسَ بِإِنْسَانٍ، وَلاَ يَصْدُقُ عَكْسُهُ.

## ترجمه

په دغه دليل سره د موجبه جزئيه عكس موجبه جزئيه راځي. او د سالبه كليه عكس سالبه كليه راځي. او دغه پخپله يوه ښكاره خبره ده. ځكه څه وخت چي د انسان څخه هيڅ يو ډبره نه ده، نو دا پخپله صادقيږي چي د ډبرى څخه هيڅ يو، انسان نه دى. او سالبه جزئيه عكس لازم نه لرى. ځكه بعض حيوان انسان نه دى صادقه ده مگر ددې عكس صادقه نه دى.

## تشريح

د سالبه كليه عكس سالبه كليه راځي، ځكه كه چيري د دې عكس كليه نه سي نو سلب د شي به د خپل ځان څخه په دليل خلف سره راسي.دمثال په توگه "لا شى من الانسان بحجر" عكس "لا شى من الحجر بانسان" دى. كه چيري دغه تسليم نه سي. نو ددغه "لا شى من الحجر بانسان" نقيض "بعض الانسان بحجر" به صادق سي. ځكه كه چيري صادق نه سي نو يو شي به د نقيضينو څخه خالي پاته سى.او دغه باطل دى.نو د عكس نقيض صادق سو.لهذا اصل دادي "لا شى من الانسان بحجر".وبعض الانسان حجر" نو نتيجه داسوه "بعض الحجر ليس بحجر". او دغه سلب د شي "حجر" د خپل ځان "حجر" څخه راغلى. او دغه باطل دى.نو دا ثابته سوه چي د سالبه كليه عكس سالبه كليه وى.

د سالبه جزئيه عكس هر وخت نه راځي بلكه كله صحى نه وى. ځكه كله كله د سالبه جزئيه موضوع عامه او محمول يې خاص وى.او دغه صادق وى ځكه د خاص د بعضو افرادو څخه د عام سلبول صحى وى. د مثال په توگه "بعض الحيوان ليس بانسان". اوس دغه قضيه صادقه ده. مگر ددې عكس "بعض الانسان ليس بانسان" كاذب دى.ځكه په دغه كي سلب د عام د بعض

افرادو څخه د خاص راځي. او دغه صحی نه دی. ځکه خاص بېله عام نه سي موجود بېدلای.او کله کله دده عکس راتلل صحي وی.دمثال په تو ګه "بعض الانسان لیس بحجر".او ددې عکس صادق وی "بعض الحجر لیس بانسان". او دغه صادق دی ددغه وجي مصنف یې وویل چي عکس ددې کلي نه وی.

خلاصه حواشي ایوبي

**سوال:** د سالبه جزئیه عکس سالبه جزئیه راتلل لازم نه دی، او دغه ډول د موجبه کلیه عکس موجبه کلیه راتلل هم لازم دی، کله صحی وی (دا هغه وخت چي موضوع او محمول سره برابر وی لکه کل انسان ناطق)، او کله بیا غلط وی (دا هغه وخت چي موضوع خاص تر محمول وی لکه کل انسان حیوان). لهذا سالبه جزئیه عکس او د موجبه کلیه عکس سره برابر دی، دواړه لازم نه دی، دواړه کله صادقه او کله بیا کاذبه وی، نو مصنف رحمه الله د موجبه کلیه د عکس په بیان کي ولي داسي نه وویل "د موجبه کلیه عکس موجبه کلیه راتلل لازم نه دی". او دلته یې بیا ولي وویل؟

**اول جواب:** عکس لغوی د قضیه لازم د قضیه سره نه وی، د سالبه جزئیه عکس سالبه جزئیه راتلل دغه عکس لغوی دی، څرنګه عکس لغوی لازم د قضیه سره نه وی په دغه وجه مصنف و فرمایل چي سالبه جزئیه عکس (لغوی) د سالبه سره لازم نه دی، او موجبه کلیه کي عکس منطقي مراد دی، او عکس منطقي لازم د قضیه سره وی، او د موجبه کلیه سره عکس (اصطلاحي) لازم موجبه کلیه نه وی نو په دغه وجه هلته مصنف رحمه الله و فرمایل چي عکس د موجبه کلیه، کلیه نه راځي. (شیخ عبدالقادر)

**دوهم جواب:** دلته مراد عکس اصطلاحي دی نه لغوی، ځکه په فن کي بیان د اصطلاحي شیانو د هغه فن مقصود وی نه د لغوي معناګانو بیان، بهر حال د موجبه کلیه عکس موجبه کلیه راتلل ډېر کم وو، نو د کموالي په وجه ده ته اعتبار ور نه کړل سو، او دی معدوم و ګرزول سو، نو و ویل سوه چي دده عکس موجبه کلیه نه راځي، پاته په سالبه جزئیه کي نو ددغه عکس سالبه جزئیه راتلل ډېر وی، نه لازم په دغه وجه مصنف و فرمایل: د سالبه جزئی عکس سالبه جزئیه راتلل لازم نه دی مګر ډېر دی.په دغه وجه یې دی بیان کړي.

تبصره: که چیری عکس اصطلاحي مراد سي نو بیا قاعده داده چي دغه لازم د قضیه سره وی، او خاص تر کومي مادې پوری نه وی، او نه اکثری وی، بلکه هر ځای ورسره لازم وی، اوس که چیری عکس اصطلاحي د سالبه جزئیه مراد وی نو هغه بیا سالبه جزئیه نسي کېدای، ځکه سالبه جزئیه د خپل اصل سره لازم په هره ماده کي نه دی، کوم چي دغه ډول وی هغه عکس د یو اصل گرزېدای نسي، نو سالبه جزئیه عکس د سالبه جزئیه گرزېدای نسي.

والله اعلم بالصواب

## عبارت

الْقِيَاسُ: قَوْلٌ مُؤَلَّفٌ مِنْ أَقْوَالٍ مَتَى سُلِّمَتْ لَزِمَ عَنْهَا لِذَاتِهَا قَوْلٌ آخَرُ، وَهُوَ إِمَّا اقْتِرَانِيٌّ: كَقَوْلِنَا: كُلُّ جِسْمٍ مُؤَلَّفٌ وَكُلُّ مُؤَلَّفٍ حَادِثٌ فَكُلُّ جِسْمٍ حَادِثٌ.

## ترجمه

قیاس یو داسي قول دی کوم چي مرکب د داسي اقوالو څخه وی چي که چیری دغه اقوال تسلیم او ومنل سي نو ددغه قول د ذات د وجي یو دربم قول لازم و گرزی. او دغه قیاس به یا اقتراني وی لکه زموږ دا قول هر جسم مرکب دی، او هر مرکب حادث دی، نو هر جسم حادث دی.

## تشریح

په منطق کي ددوی شیانو بیانول مقصود وي. ۱: قول شارح. ۲: دوم :قیاس. څه وخت چي مصنف د قیاس د موقوف علیه څخه فارغه سو نو ده په بیان کي د قیاس شروع و کړه او وېويل: القياس.

**د قیاس تعریف:** هر هغه قول چي ددو یا زیات تردد و قضایاؤ څخه داډول مرکب وی چي دده د منولو څخه د یو بل قول منل لازم وی.

**د تعریف د قیودو بیان:** د مؤلف څخه هغه مؤلف مراد دی چي هغه معقول او عقلي وی. ځکه اصل رسونکي بالذات وتصدیق ته دغه معقول دی. په خلاف د مؤلف ملفوظ ځکه دغه په واسطه د مؤلف معقول رسونکي وی. لهذا قیاس په مؤلف معقول کي حقیقت او په لفظي کي

مجاز دی. اوس که چیري دغه تعریف د قیاس عقلي سي نو بیا د قول مؤلف څخه مرکب معقول مراد دی. او که چیري د لفظي تعریف سي نو بیا د مؤلف څخه قول لفظي مراد دی. او دده سره د نتیجه لازم والي په دې اعتبار سره دی چي دغه ملفوظ په دغه معقول باندي دلالت کونکي دی. بهرحال د نتیجه څخه مراد په هر صورت کي عقلي مراد دی. ځکه په نتیجه سره تلفظ کول د تلفظ څخه د قول ملفوظ لازم نه وي. ځکه قیاس نتیجه ورکوي نه تلفظ په نتیجه سره. او دغه ډول د قول ملفوظ د معناګانو د تصور څخه تلفظ په نتیجه سره لازم نه وي. ځکه د تصور څخه د معناګانو د قول ملفوظ تصور د معني د نتیجه لازم وي نه په دې سره تلفظ کول.

: د مصنف د دغه قید "متی سلمت" څه فائده ده؟

ب: څه وخت چي مصنف "مؤلف من اقوال" وویل نو د دغه څخه ښکاره داوه چي دغه اقوال به په حقیقت او نفس الامر کي رښتني وي. نو بیا هغه قیاس خارج سو چي هغه د واقعي رښتینو مقدماتو څخه جوړ نه وي، بلکه دده مقدماتي دروغجني وي. نو تعریف د قیاس هغه قیاس ته شامله نه سو چي د هغه مقدماتي دروغجني وي، مصنف و دغه قیاس ته د تعریف د شاملېدو دپاره وویل "متی سلمت". نو اوس تعریف خپلو افرادو ته شامله وګرزېدی. ځکه مراد د قیاس د مقدماتو څخه هغه مقدماتي مراد نه دي چي دوی واقعي رښتني وي، بلکه هغه قضایا او مقدماتي مراد دی چي هغوی که چیري ومنل سي نو بیا ددوی څخه بل قول لازمیږي، عام تر دې چي دغه اقوال واقعي رښتني وي او که نه وی. نو اوس تعریف و هغه قیاس ته شامله سو چي د هغه مقدماتي دروغجني مګر منل سوي وي. د مثال په توګه "الانسان حجر و کل حجر جماد" اوس دغه دواړي مقدماتي چي څه وخت و منل سي نو د دغه څخه دا قول "الانسان جماد" بیا لازمیږي.

قوله القیاس آه: المقصد الاعلي من المنطق الخ: د ذکر سوی اصطلاحاتو څخه ستر مقصود هغه قیاس دی. ځکه د منطق څخه ستر مقصود و مجهول ته رسېدنه ده، او قیاس و مجهول

تصديقي ته رسونكي وی كوم چي د مقاصدو څخه تر ټولو د شرف وړ دی. نو په دغه وجه قياس مقصدی اعلي دی.

《فائده》: حقيقت دعلوموتصديقات په مسائلو يا پخپله مسائلي دي.او تصورات ددغه مسائلو موضوع او محمولات وي.اورسونكي و مجهول تصوراتو ته قول شارح او مجهول تصديقاتو ته رسونكي په درې قسمه دي.١: قياس.٢: استقراء.٣: تمثيل.اوس دلته دوه شيان سوه.١:تصورات.٢: تصديقا ت.تصورات مبادي،موقوف عليه اووسائل لپاره د قياس وي.ځكه قياس بېله موضوع او محمول نه سي اتلای.محمول او موضوع د تصوراتو څخه وي.لهذا تصورات وسائل او تصديقات مقاصد دي.او ووسائلو ته رسونكي قول شارح او تصديقاتو ته رسونكي قياس،استقراء او تمثيل دی.او و اصل ته رسونكي ښه تر هغه دی چي هغه و وسائلو ته رسونكي وي.او دغه ډول هغه شي يقين فائده كوي ترهغه ښه دی چي هغه يقين نه فائده "تمثيل او استقراء" كوي.لهذا قياس بالنسبت وقول شارح او دغه ډول استقراء او تمثيل ته اعلي او اوچته دي.

قوله القياس آه: هو في اللغة المساوات: سوال: قياس په لغت كي و څه ته ويل كيږی؟

جواب: قياس په لغت كي و مساوات او برابری ته ويل كيږی. او اصطلاحي تعريف لوړ تېر سو.

سوال: دلته د قياس د معني لغوی او اصطلاحي تر مينځ څه موافقت وجود لري؟

اول جواب: څرنګه قياس په لغت كي و مساوات ته ويل كيږی، دغه ډول د قياس اصطلاحي نتيجه په صدق او كذب كي د قياس د مقدمو سره برابره وی (يعني كه صغری او كبری مثلاً رښتيني وی نو نتيجه به رښتيني وی او كه دروغ وی نو نتيجه به هم دروغ وی).

دوم جواب: قياس په لغت كي و برابری ته ويل كيږی دغه ډول په اصطلاحي قياس كي نتيجه (چي په اصل كي مجهوله وه) د مقدمو سره د قياس په معلوميت كي برابر ګرزی، لكه دوی معلومي وي دغه ډول نتيجه هم معلومه و ګرزی. لهذا قياس سبب د پاره د برابروالي د نتيجه د مقدمو سره دی، نو قياس سبب او د نتيجه د مقدمو سره برابر ګرزېدل مسبب دی. او د

مسبب نوم قیاس دی، نو دغه نوم يې د سبب دپاره و گرزوی، لهذا دغه د سبب په نامه سره د مسبب مسمي کولو د قبیلې څخه دی.

فان قيل تعريف القياس غير جامع :سوال: د قیاس کړل سوی تعریف صحت نه لری، ځکه هر تعریف خپلو افرادو ته جامع وی، او کوم چي جامع نه وی هغه صحی نه وی، اوس دا خبره چي دغه تعریف جامع نه دی، ځکه زموږ دا قول "زید د شپې گرزی"، ددې نتیجه داده" دی غل دی".
اوس دغه یو قیاس دی مگر مرکب د دوو مقدمو څخه نه دی. بلکه دی پر یوې مقدمې "زید د شپې گرزی" مشتمله دی؟

جواب: تعریف جامع دی، او "مؤلف" عام شامله و هغه مؤلف ته دی کوم چي بالفعل مرکب د مقدمو څخه وی او که مرکب د مقدمو څخه بالقوه وی یعني یوه ذکر سوې او بله مقدره وی.
نو اوس تعریف جامع سو ، ځکه دغه ذکر سوی قیاس مرکب د مقدمو څخه دی چي یوه ذکر سوې او هغه بله مقدره ده، اصل يې دادی " زید د شپې گرزی، او هر څوک چي د شپې گرزی هغه غل وی، نو زید غل دی". لهذا کبری مقدره ده، او مقدره د ذکر سوی په حکم کي وی.

سوال: هر تعریف پر جنس او فصل مشتمله وی، دلته جنس او فصل څوک دي؟

جواب: لفظ د "قول" دغه جنس دی، او لفظ د "اقوال" فصل دی په دغه سره هغه قضیه ووتل چي یوازی وي، او د بلي سره مرکبه نه وی، او ددې سره عکس نقیض او یا عکس مستوی ورسره لازم وی. لکه "کل انسان حیوان"، نو ددې سره دا لازمه ده "بعض الحیوان انسان". لهذا دغه یوه قضیه ده چي ددې سره بله لازمه ده. او قیاس جوړ د دوو قضیو څخه وی چي ددوی سره بیا نتیحه لازمه ده.

او د مصنف دغه قول " متي سلمت "د تعریف د شمول دپاره دی چي دغه و هغه قیاس ته شامله سي چي د هغه مقدمه کاذبي وي. د مثال په توگه "الانسان حجر و کل حجر جماد" اوس دلته صغری که څه هم کاذبه ده مگر چي څه وخت دغه مقدمه سره د ملگری چي کبری ده تسلیم سي نو ددغه څخه یو دریم قول لازمیږی چي هغه "الانسان جماد" دی.

او په دغه قید نسره "لذاتها" هغه قیاس ووتي چي هغه د یو خارجي مقدمه په توسط مستلزم و قول آخر ته ﴿چي نتیجه ده﴾ وي. لکه قیاس مساوات ﴿ هرهغه قیاس چي دی دداسي

ددومقدماتو څخه جوړوي چي داولي قضيې د محمول متعلِق د دويمي قضيه موضوع واقع سوي وی.دمثال په توګه " آ مساو لب" و ب مساو لج". اوس په دغه کي د اولي قضيې د محمول "لب" . او دغه مجموعه د لام جاره او د ب څخه مرکبه ده "متعلِق " چي يووازي "ب" ده سره ددويمي قضيې "ب مساو لج" موضوع "ب" واقع سوې ده.اوس ددغه دواړو سره چي يو بله قضيه پرته ددغه مقدماتو ملګري سي "چي هغه داده مساوی المساوی مساوي يعني د مساوي مساوي وی" نو بيا نتيجه ته دغه مقدماتي مستلزمي سي چي هغه داده "آ مساو لج". اوس که چيري دغه قضيه ددغه مقدماتو سره ملګرې نه سي نو بيا دغه قياس هيڅ نتيجه نه ورکوي. د مثال په توګه ته ووايې "الانسان مباين الفرس. و الفرس مباين الناطق" اوس دغه دواړه نتيجه نه سي ورکولای. ځکه دلته يوه بيګانه قضيه "مباين المباين مباين" موجوده نسته.اوس که چيري دغه موجوده وای نو بيا به نتيجه ورکړې وای. نو ددې څخه معلومه سوه چي دغه بيګانه جمله په مخکني صورت کي " آ مساو لب" موجوده وه نو نتيجه يې ورکړه او په دوم صورت "الانسان مباين الفرس" کي موجوده نه وه نو نتيجه يې نه ورکړه. پس دغه نتيجه ورکول په توسط ددغه بيګانه قضيې دی.

او د مصنف دغه قول "آخر" ددې مطلب دادی چي دغه نتيجه به د قياس د مقدمو څخه سېوا وي، ځکه که چيري سېوا نه سي نو بيا به دا لازميږي چي څرنګه هم دوې قضيه سره يو ځای کړل سې نو هغه به قياس وی. د مثال په توګه تا وويل "زيد کاتب. و زيد شاعر". اوس دغه دي قياس سي.ځکه دغه دواړي قضيې چي سره يو ځای کړی نو دغه کل دی. او هر کل و خپل جزء ته" او جزء يې دلته صرف زيد کاتب يا زيد شاعر دی" لازم وي. لهذا په دغه دوو قضيو باندي دا صادقيږي چي دا يو داسي اقوال دی چي دې مستلزم و قول آخر"چي ددغه يو جزء دی" ته دی. حالانکه دغه ته قياس نه ويل کيږي بلکه د قياس لپاره خپل شرائط دي. لهذا په دغه صورت کي تعريف د قياس د اغيارو څخه مانع نه سو.او دغه نه مانع والي يې ددې وجي څخه راغلي چي نتيجه سېوا د مقدمو څخه نه وه.بلکه بعينه يوه د مقدمو څخه وه.لهذا دا معلومه سوه چي نتيجه به سېوا د مقدمو څخه وی.

سوال: " لذاتها" ضمير و چا ته راجع دی؟

جواب: دغه راجع و "اقوال" ته دی، او اقوال جمعه ده. او جمعي ته د مؤنث ضمير په تأويل د جماعت راجع کيږی.

سوال: که چيری د مؤنث د ضمير پر ځای د مذکر ضمير وای يعني "للذاته" نو بيا دغه صورت ښه دی او که د مؤنث؟

جواب: ضمير د مذکر غوره دی لکه څه ډول چي دغه په کتاب سلم العلوم کي هم ضمير په صورت د مذکر راغلي دی، او د ښوالي وجه داده که چيری ضمير د مؤنث سي نو بيا به راجع و "اقوال" ته سي. نو معني به دا و ګرزی چي نتيجه راتلل په وجه د ذات د اقوالو وی او په دې کي د کوم شي دخل نسته. او که چيری ضمير د مذکر راجع سي نو معني به داسي چي دغه قول چي مرکب د اقوالو څخه دی (چي په هغه کي مقدماتو څخه ترتيب او صورت د قياس ټوله په کي شامله دی، ځکه د ترتيب او صورت پر ته محض و اقوالو ته قياس نه ويل کيږی) چي د دغه قول د ذات د وجي نتيجه لازمه ګرزی، نو په دې صورت کي د نتيجه په راتګ کي د اقوالو ددوی د ترتيب او صورت دخل ته اشاره ترسره سوه، او د مؤنث د ضمير په صورت کي محض و اقوالو ته اشاره راځي نه و ترتيب او صورت ته. او دغه خبره حق ده چي په نتيجه کي څرنګه د اقوالو دخل سته دغه ډول د دغه اقوالو د ترتيب او ددوی د صورت هم دخل سته. لهذا د مذکر د ضمير په صورت کي و هغه ټولو شيانو ته اشاری ترسره کيږی چي د هغوی په نتيجه کي دخل لری په خلاف د مؤنث په دغه وجه د مذکر ضمير اولي تر ضمير د مؤنث د راوړلو دی.

فافهم: سوال: ستا د عبارت څخه دا معلوميږی چي ضمير د مذکر راجع ګرزول و قول ته صحی دی، او مؤنث ته راجع ګرزول باطل دی، ځکه تا وويل چي ضمير د مذکر "کما هو الحق" دی. او د حق مقابل باطل وی، څرنګه دلته د مذکر د ضمير مقابل ضمير د مؤنث دی، نو د مذکر ضمير راجع کول حق او د مؤنث دا بيا ناحقه و ګرزېدی. او حال دا چي تا د حاشيه په ابتداء کي وويل چي د مذکر ضمير اولي تر ضمير د مؤنث دی، ددې مطلب داسو چي ضمير د مؤنث صحی دی مګر غير اولي دی. نو د حاشيه په آخر کي ضمير د مؤنث باطل او په ابتداء کي صحی ګرزول نه دی مګر تعارض؟

جواب: "كما هو الحق" خبره د ضمير د مذكر په هكله نه ده، بلكه و دې خبرى ته اشاره ده چي د نتيجه په راتګ كي صورت او ترتيب د اقوالو هم دخل لرى، لهذا "كما هو الحق" دغه خبره ددې قول سره تعلق لرى چي ترتيب او صورت د اقوالو په نتيجه كي دخل لرى، او تعلق ددې خبرى سره نه لرى چي ضمير د مذكر حق او د مؤنث دا بيا باطل دى. كه چيرى داسي واى نو بيا به اعتراض وارد سوى واى.

قوله اقتراني : سوال: د اقتراني لغوى او اصطلاحي معناګاني دي بيان سي؟

جواب: اقتراني كي ياء نسبتي ده، يعني منسوب بسوى اقتران، او اقتران په معني سره د ژندې كېدلو، او نزدې سوى دى. او په اصطلاح كي هر هغه قياس چئ په هغه كي نتيجه په خپله ماده سره موجوده وى مګر په خپل هيئت سره موجوده نه وى. د مثال په توګه "كل جسم مؤلف. و كل مؤلف محدث.فكل مؤلف محدث"اوس په مخكني قياس كي جسم او دغه ډول محدث دواړه ذكر دى. مګر جسم مبتدا او محدث دده څخه د خبر د واقع كيدو په صورت كي ذكر نه دى. داډول چي جسم مبتدأ او محدث دده څخه خبر واقع سوي وى. بلكه جسم مبتدأ په طرف كي د صغرى او محدث خبر په طرف كي د كبرى واقع سوي دى.

سوال: قياس اقتراني ته ولي اقتراني ويل سوى دى؟

جواب: څرنګه اقتران و يوځاى والي ته ويل كيږى دغه ډول په دغه قياس كي حدِ اصغر، اوسط او حدِ اكبر كي سره يوځاى او متصله وى په دې معني سره چي ددوى ترمينځ كوم د استثناء حرف راغلي نه وى.

## عبارت

وَإِمَّا اسْتِثْنَائِيٌّ: كَقَوْلِنَا: إِنْ كَانَتِ الشَّمْسُ طَالِعَةً فَالنَّهَارُ مَوْجُدٌ لكِنِ النَّهَارُ لَيْسَ بِمَوْجُودٍ فَالشَّمْسُ لَيْسَتْ بِطَالِعَةٍ. وَالمُكَرَّرُ بَيْنَ مُقَدِّمَتَي القِيَاسِ يُسَمَّى حَدًّا أَوْسَطَ. وَ مَوْضُوعُ المَطْلُوبِ يُسَمَّى حَدًّا أَصْغَرَ .وَمَحْمُولُهُ يَسَمَّى حَدًّا أَكْبَرَ.

## ترجمه

او دغه قیاس به یا استثنائي وی، لکه زموږ دا قول : که چیری لمر راختلي وی نو ورځ به موجوده وی، مګر ورځ موجوده نه ده نو لمر راختلي نه دی. د قیاس د مقدمو تر مینځ چي کوم مکرر راغلي وی هغه ته حدی اوسط ویل کیږی. او د نتیجه موضوع ته حدی اصغر او محمول ته د مطلوب اکبر ویل کیږی.

## تشریح

**د قیاس استثنائي تعریف :** هر هغه قیاس چي په هغه کي نتیجه یا د نتیجه نقیض د ماده او هیئت په دواړو اعتبارنو سره په قیاس کي ذکر سوي وی.

**مثال:** "ان کان الشمس طالعة بالنهار موجود". لکن الشمس طالعة ینتج ان النهار موجود". او س "النهار موجود " د خپل ماده او هیئت او صورت په اعتبار په طرف کي د قیاس واقع سوي دی. او د نتیجه د نقیض د ذکر کېدو مثال لکه "ان کان الشمس طالعة فالنهار موجود لکن الشمس لیست بطالعة ینتج ان النهار لیس بموجود". او س دلته په قیاس کي د نتیجه "النهار لیس بموجود" نقیض "النهار موجود" موجو ده دی.

**د تسمیه د وجي بیان:** دغه ته استثنایي ددې وجي ویل کیږي چي په دغه کي حرف استثناء "لکن" ذکر سوې وي

**د قیاسِ اقتراني د اجزاء بیان:** ۱: اوسط وهغه شي ته ویل کیږي کوم چي په مابین کي راغلي وي دغه ډول حد اوسط هم په مابین کي د اصغر او د اکبر وي (او دا په هغه شکل کي چي اصل ترټولو دی او هغه شکل اول دی. او د پاته نورو شکلو رجوع هم دغه اول شکل ته کیږي نو ګویا دغه په ټولو اشکالو کي په مابین کي د صغری او کبری واقع سوي وی).او یا اوسط د واسطه څخه دی. دغه ډول حد

اوسط په نتيجه راهيستولو كي(يعني دده په واسطه سره د نتيجه ديوه طرف"اكبر" وهغه بل طرف ته يې نسبت ايجابي يا سلبي كيږي) واسطه ده.

۲: د نتيجه موضوع ته حدى اصغر ويل كيږي .ځكه اصغر وكوشني اوكم ته ويل كيږي دغه ډول حدى اصغرموضوع د نتيجه واقع وى. موضوع په اكثرو حالاتو كي خاص تر محمول وى. او د خاص افراد كم وي. دغه ډول د موضوع افراد هم تر محمول د افراد و كم وى.

۳: د نتيجه و محمول ته اكبر ويل كيږي. ځكه اكبر وغټ او ډيرو ته ويل كيږي دغه ډول حد اكبر محمول د نتيجه واقع سوي وى، اومحمول په عاموحالاتو كي عام تر موضوع وي.او د عام افراد زيات وي ددغه وجي و ده ته اكبر ويل كيږي.

**سوال:** د نتيجه و موضوع ته ويلي اصغر ويل كيږى؟

**جواب:** دغه تسميه د شي په نامه سره د مشبه به ده، په اصل كي حدى اصغر و لږ اجزاؤ لرونكي شي ته ويل كيږى. او د نتيجه موضوع هم لږ افراد لرونكې وى، او د لږ افراد لرونكي تشبيه د لږ لرونكي اجزاؤ سره وركړل سوه. او ددوى په مينځ كي د تشبيه علاقه لږوالي دى. لهذا مشبه (لږ افراد لرونكي) په نامه سره د مشبه به (لږ اجزاء لرونكي) سره مسمي سو.

**﴿فائده﴾**: دلته څلور شيان دي .۱: كل .۲: كلي. اجزاء. ۴: افراد. كلي افراد لرى، او كل اجزاء لرى، جزء پر كل نه حمل كيږى او فرد پر كلي حمل كيږى. نو دلته د افرادؤ تشبيه د اجزاؤ سره وركړل سوې ده. او علاقه د تشبيه لږ والي دى . دغه ډول كلي د كل سره تشبيه لري په وحدت كي څرنګه كلي يو وى دغه ډول كل هم يو وى. داډول چي حيوان يو كلي دى نه دوه، دغه ډول كل دى، نو كلي د كل سره او افراد د اجزاء سره تشبيه لرى. په دغه وجه د مشبه به د نامه اطلاق يې پر مشبه باندى وكړى.

**سوال:** د نتيجه و موضوع ته ولي اصغر ويل كيږى؟

**جواب:** ځكه موضوع تر محمول اكثره خاص وى، او د خاص افراد كم وى، او كم افراد لرو نكي ته اصغر ويل كيږى، په دغه وجه و موضوع ته د نتيجه اصغر ويل كيږى.

**سوال:** و موضوع ته د نتیجه ولي اصغر ویل کیږي، باید دغه ته اقل وویل سي، ځکه د اصغر پر هغه شي اطلاق کیږي چي د هغه اجزاء کم وي، او د اقل اطلاق پر هغه شي کیږي چي هغه لږ افراد لري، نو موضوع د نتیجه کم افراد لري نه کم اجزاء؟

**جواب:** دلته کم افراد په منزله د کم اجزاء لرونکي شي ګرزول سوي دي. نو څرنګه پر کم اجزاء باندي اطلاق د اصغر کیږي دغه ډول یې پر هغه شي هم اطلاق کیږي چي د هغه کم افراد په مثل د کم اجزاء ګرزول سوي دي.

**سوال:** موضوع ولي عموما خاص تر محمول وي؟

**جواب:** ځکه موضوع او مبتدأ عبارت د ذات څخه وي او محمول عبارت د وصف څخه وي، په ذات کي خصوصیت وي اوپه وصف کي عموم وي، ځکه د وصف داډول تعریف تر سره سوي دي : هر هغه اسم چي دلالت پر هغه مبهم ذات کوي چي د هغه سره بعض صفات ددغه ذات اخیستل سوي وي.

**سوال:** غالباً قید ولي ویل سوي دي داډول چي موضوع غالبا تر محمول خاص وي؟

**جواب:** ځکه دا هم ممکنه ده چي موضوع مساوي د محمول سره وي. لکه ویل کیږي "هر انسان ناطق دی". مګر عموما موضوع تر محمول خاص وي لکه "هر انسان حیوان دی".

**سوال:** محمول ته د نتیجه اکبر ویل صحت نه لري، ځکه اکبر و هغه شي ته ویل کیږي چي ډېر اجزاء لري، او محمول د تنیجه ډېر اجزاء نه لري بلکه ډېر افراد لري؟

**جواب:** دلته افراد د اجزاؤ مشابه دي، او تشبیه یې په ډېر والي کي ده. لهذا دغه تشبیه د مشبه په نامه سره د مشبه به (کثیر اجزاء) ده.

## عبارت

وَالمُقَدِّمَةُ الَّتِي فِيهَا الْأَصْغَرُ تُسَمَّى صُغْرَى .وَالَّتِي فِيهَا الْأَكْبَرُ تُسَمَّى كُبْرَى .وَهَيْئَةُ التَّالِيفِ تُسَمَّى شَكْلاً .وَالْأَشْكَالُ أَرْبَعَةٌ :لِأَنَّ الحَدَّ الْأَوْسَطَ إِنْ كَانَ مَحمُولاً فِي الصُّغْرَى مَوْضُوعًا فِي الْكُبْرَى فَهُوَ الشَّكْلُ الْأَوَّلُ .

## ترجمه

هغه قضيه چي په هغه کي صغری وی هغه ته صغری ويل کيږی. او په کومه مقدمه کي چي اکبر وی هغه ته کبری ويل کيږی. او د ترکيب کيفيت په نامه د شکل نومول کيږی. او اشکال خلور دي. ځکه حدی اوسط که چيری محمول په صغری کي او موضوع په کبری کي وی دغه شکلِ اول دی.

## تشريح

**تعريف د صغری :** هغه مقدمه چي په هغه کي اصغر واقع سوي وی هغه ته صغری ويل کيږي، ځکه دغه مقدمه په حدی اصغر باندي مشتمله وی.او دغه مسمی کول د کل په وصف سره د جزء ده.

**تعريف کبری:** هغه مقدمه چي په هغه کي حدی اکبر واقع سوي وی هغه ته کبری ويل کيږي ځکه دغه مقدمه په اکبر باندي مشتمله وی.او دغه مسمی کول د کل په وصف سره د جزء ده.

**تعريف قرينه:** د مقدمو يو ځای والي "چي په موجبه والي سالبه والي، کليه والي يا جزئيه والي کي وی" ته قرينه ويل کيږي، ځکه قرينه د اقتران ښخه ده . او دلته د اقتران ښخه يو ځای والي د مقدمو په حيث د ايجاب يا سلب او د کليت او جزئيت مراد دی. لهذا قرينه ته پر اقتران باندی د دلالت کولو د وجي قرينه ورته ويل کيږي.او دغه ته ضرب هم ويل کيږي، ځکه ضرب و نوعي او يو قسم ته ويل کيږي، دغه ډول ددغه اقتران په سبب د اشکالو يو خاص نوع "شکل" حاصليږي.

**تعريف شکل:** هغه هيئت او صورت چي حاصل د حدی اوسط د اصغر او اکبر سره دوضع کو لو (داډول حداوسط په صغری او کبری په دواړو کي محمول يا په دواړو کي موضوع او يا په يوه کي موضوع او په هغه بل کي محمول واقع سي) ښخه حاصل سي دغه ته شکل ويل کيږي، ځکه

شکل په لغت کي وهیئت اوصورت ته ویل کیږي، دغه ډول دحدی اوسط د حدی اصغر او اکبر سره د یوځای کولو څخه یو هیئت اوصورت حاصلیږي. ددغه وجي دغه ته شکل ویل کیږي.

**دشکل اقسام:** شکل څلور قسمونه لري.

**شکل اول:** هر هغه شکل چي په هغه کي حدی اوسط د صغري په طرف کي محمول او د کبری په طرف کي موضوع واقع سوې وی.

**مثال:** "کل انسان حیوان"و" کل حیوان جسم" نو نتیجه دا سوه "کل انسان جسم".

**دتسمیه د وجي بیان:** اول ومخکي ته ویل کیږي دغه ډول ددغه شکل نتیجه بدهي ده او د پاته نورو شکلو نتیجه نظری ده اودهغه ټولو رجوع و ده ته کیږي نو ددغه وجي سره و دغه شکل ته اول ویل پکار دي، ددغه وجي دی یې په اول سره و نموی.

خلاصه حواشي ایوبي

صغری په لغت کي هر هغه شي ته ویل چي هغه موصوفه په صغر او کوشني والي سره وی. او په اصطلاح کي هغه مقدمه ته ویل کیږی چي په هغه کي حدی اصغر واقع سوی وی. او دغه مقدمه ته په دې وجه صغری ویل کیږی چي په دې کي اصغر واقع سوی دی. او هغه مقدمه چي په هغه کي اکبر واقع سوی وی هغه ته کبری ویل کیږی. او کبری په لغت کي هر هغه شي ته ویل کیږی چي هغه موصوف په وصف سره د کبر او لوی والي وی، یعني لوی او غټ شي. او په اصطلاح کي هغه مقدمه ته ویل کیږی چي په هغه کي اکبر واقع سوی وی. او دې ته په دې وجه اکبر ویل کیږی چي دا پر اکبر مشتمله وی.

**سوال:** شکل و څه ته ویل کیږی؟

**جواب:** شکل هغه هیئت ته د جسم ویل کیږی کوم چي د یوه حد د احاطه کولو څخه حاصل سوی وی، لکه په جسمي کروی کي. او یا د څو حدودو د احاطه کولو (چارچاپېره) څخه ورته حاصل سوی وی لکه د جسم کروی نیمی او مثلث او دغه ډول نور.

وقالَ ابنُ الْكَمالِ : الشَّكْلُ هَيْئَةٌ حاصِلَةٌ للجِسْمِ بِسَبَبِ إحَاطَةِ حَدٍّ واحِدٍ بالْمِقْدَارِ كمَا في الكُرَةِ أو حُدودٍ كَما في المُضَلَّعاتِ مِنْ مُرَبَّعٍ ومُسَدَّسٍ ج : أشْكَالٌ وشُكُولٌ. (تاج العروس ، الفصل الجيم المعجمة مع اللام).

او په اصطلاح کي د مناطقو هغه هيئت ته ويل کيږي کوم چي د صغرى د کبرى سره د يو ځای کېدلو څخه پيدا کيږي.

**سوال:** شکل اول ته ولي اول ويل کيږي؟

**جواب:** ځکه دغه تر ټولو شرف او عزت لرونکي شکل دی، دده نتیجه بدهي وی، او پاته شکلونو رجوع هم و دغه ته کیږی. څرنګه شرف لرونکي اول او اولي وی په دغه وجه و دغه ته اول وویل سو.

**سوال:** شکل څو قسمونه لري؟

**جواب:** په دې کي دوه قوله دي.

۱: **متأخرين:** شکل څلور قسمونه لری، لکه مصنف چي ذکر کړي دي.

۲: **متقدمين:** شکل درې قسمونه لري. څرنګه څلورم قسم د شکل د شکلي اول سره مخالفت لری. او د طبعیت څخه ډېر زیات لری دی ددغه بعد او نږ ی والي په وجه و ده ته اعتبار ورنه کړل سو.

## عبارت

وَإِنْ كَانَ بِالْعَكْسِ فَهُوَ الرَّابِعُ .وَإِنْ كَانَ مَوْضُوعًا فِيهِمَا فَهُوَ الثَّالِثُ. وَإِنْ كَانَ مَحْمُولاً فِيهِمَا فَهُوَ الثَّانِي .وَالشَّكْلُ الثَّانِي مِنْهَا يَرْتَدُّ إِلَى الْأَوَّلِ بِعَكْسِ الْكُبْرَى. وَالثَّالِثُ يَرْتَدُّ إِلَيْهِ بِعَكْسِ الصُّغْرَى. وَالرَّابِعُ يَرْتَدُّ إِلَيْهِ بِعَكْسِ التَرْتِيبِ أَوْ بِعَكْسِ المُقَدِّمَتَيْنِ. وَ بَدَهِيُّ الإِنْتَاجِ هُوَ الأَوَلُ.

## ترجمه

او که چیری د اول شکل بالعکس وی نودغه څلورم شکل دی. او که چیری حدی اوسط په دواړو کي موضوع واقع سوې وی نو دغه دریم شکل دی، او که چیری په دواړو کي محمول واقع سوی وی نو دغه دوهم شکل دی. او د دغه شکلونو څخه دوهم و اول ته په عکس د کبری ردیږی، او دریم شکل و اول ته په عکس د صغری ردیږی. او څلوَرم شکل و اول ته په عکس د ترتیب سره او یا په عکس سره د مقدمو ردیږی. او هغه شکل چي د هغه نتیجه ورکول بدهی وی دغه شکلی اول دی.

## تشريح

**د دوم شکل تعریف:** هر هغه شکل چې په هغه کې حدی اوسط په دواړه طرفونو کې محمول واقع سوي وی.د مثال په توګه "کل انسان حیوان".ولا شی من الحجر بحیوان" نو نتیجه دا سوه "لا شی من الانسان بحجر".

**د تسمیه دوجې بیان:** دغه د شکل اول سره په اشرف کې د مقدمو چې صغری ده شریک دی د دغه شریکوالي په وجه دی تر باقي شکلونو ښه دی، ددغي وجي دی په نامه سره د دوم مسمی کول پکار وه. په دغه وجه دی په دغه نامه سره ونمول سو.

**د دریم شکل تعریف:** هر هغه شکل چې په هغه کې حدی اوسط په دواړه طرفینو کې موضوع واقع سوی وی. د مثال په توګه "کل انسان حیوان" و کل انسان ناطق" نو نتیجه دا سوه " بعض الحیوان ناطق".

**د تسمیه د وجي بیان:** دغه د شکلي اول سره په هغه کمزوه مقدمه کې چې کبری ده شریک دی. لهذا دی په دغه وجه تر دوم ورسته سو، او تر دوم ورسته دریم وی ، په دغه وجه ده ته دریم وویل سو.

**د څلورم شکل تعریف:** هر هغه شکل چې په هغه کې حدی اوسط موضوع په طرف کې د صغری او محمول په طرف کې د کبری واقع سوي وی. دمثال په توګه "کل انسان حیوان" و کل ناطق انسان"نو نتیجه دا سوه "بعض الحیوان ناطق".

**د تسمیه د وجي بیان:** دغه د شکلي اول څخه تر ټولو لري شکل دی، او په هیڅ کې د اول شکل سره شریک والي نه لري، په دغه وجه دی تر ټولو آخر راوړل سو. او په شکلو نو کې تر ټولو آخر څلورم دی ددغه وجي دی په نامه سره د څلورم و نمول سو.

**سوال:** د څلورم شکل مثال وړاندی کړه؟

**جواب:** مثال دادی " کل انسان حیوان"، دغه صغری ده، او کبری داده "کل ناطق انسان". نو نتیجه دا ګرزی" کل ناطق حیوان"، اوس دغه شکل د ترتیب په اړولو سره شکل اول ګرزی داډول " کل ناطق انسان"، "کل انسان حیوان". نو نتیجه دا ورکوی " کل ناطق حیوان". او ددغه قیاس نتیجه په عکسِ مستوی سره دا ګرزی " بعض الحیوان ناطق ". او هم دغه مقصودی نتیجه ده.

**سوال:** شکل اول ته ولي اول ویل کیږی؟

**جواب:** ځکه په دغه څلورو اشکالو کي تر ټولو ښه شکل اول دی.

**اول دلیل:** ځکه د شکلي اول د ترتیب تقاضي هغه طبعیت کوي چي هغه سالم او د نقص څخه خالي وي.او هغه دا دي چي نقل د اصغر څخه و اوسط ته راسي، او د اوسط څخه بیا و اکبر ته راسي. او هم دغه ترتیب په شکلي اول کي وجود لری.

**دوم دلیل:** بین الانتاج دی. ددې مطلب دادی چي مقصد د شکل د پیژندني څخه د نتیجه پیژندنه ده. او د شکلي اول د پیژندني څخه د نتیجه پیژندنه بدهي او ښکاره ده. ځکه دپیژندني څخه "د دې خبري چي اصغر په اوسط کي او اوسط بیا په اکبر کي درج دی" دا پیژنده لازمه ده چي اصغر لاندي تر اکبر درج دی.

**دریم دلیل:** دغه ډول د اول شکل نتیجه مؤجبه کلیه،مؤجبه جزئیه،سالبه کلیه او سا لبه جزئیه راتلای سي. په خلاف د نورو پاتو شکلونو چي د هغو نتیجه مؤجبه کلیه راتلای نسي.

**﴿فائده﴾:** **د ټوله بحث خلاصه:** مقصد ددغه اشکالو د پیژندو څخه دنتیجه پیژنده ده﴿ اونتیجه پر اصغر "چي موضوع ده"او پر اکبر "چي محمول ده" مشتمله وی، د موضوع او د محمول ترمینځ یو نسبت وی. دغه نسبت که چیري ښکاره وی نوبیابه دی محتاجه و دلیل ته نه وی. او دغه خبره ښکاره ده، ځکه قیاس دهغه نسبت د معلومولولپاره وی کوم چي په نتیجه کي وجود لری.او که چیري دغه نسبت مجهول وی نو اوس به دلته هغه شی موجود وی دکوم چي نسبت اصغر او اکبر دواړو ته سوي وی"او دغه حد اوسط دی". او که چیري دغه نه وی نو بیا دلیل وجود نه سي پیدا کولای ځکه دلیل ببله حدی اوسطه نه سي راتلای﴾. ځکه د نتیجه پیژندنه عبارت د پیژندني څخه ددې خبري دی چي اصغر په اوسط کي درج دی.او ددغه سره سره دغه صغوی به موجبه وی. ځکه دلیل دصغری دموجبه کېدو څخه پرته نتیجه نه سي ورکولای.او ددې سره سره کبری به کلیه وی. که چیري نه وی نو بیا دلیل نه سي راتلای. لهذا ددلیل دپیژندني څخه د نتیجه دپیژندني دراتلولپاره دغه راتلونکي شیان شرط دي.١: نتیجه به نظری وی.٢: حد اوسط به موجود وی.٣: صغری به مؤجبه وی.۴: کبری به کلیه وی.او دغه ټول شیان په اول

شکل کي موجود دی. ددغه وجي شکل اول د هغه ترتیب مطابق دی د کوم چي مستقیم طبعیت تقاضي کوی".

**سوال:** د شکلي اول د نتیجه ورکولو لپاره کوم شرط دی؟

**جواب:** شکل اول هلته نتیجه ورکوی چي صغری موجبه او کبری کلیه وی.

**سوال:** مصنف ولي دغه شرط ذکر نه کړي؟

**جواب:** دغه خبره ښکاره وه په دې وجه يې ذکر نه کړی،

**سوال:** مصنف رحمه الله شرائط د شکلي اول ذکر نه کړه ، بلکه دده هغه صورتونه "په دې راتلونکي عبارت کي و ضروبه المنتجة اربعة الضرب الاول" يې ذکر کړه چي هغه نتیجه ورکوی، نو په دغه ذکر کولو کي اشاره و دې خبری ته کېده چي د دغه شکل نتیجه ورکول بدهي ده،په دې وجه گواکي دی و شرائطو ته احتیاج نه لری.

**﴿فائده﴾:** دغه حاشیه بنا پر هغه نسخې ده چي په هغه کي د شکلي اول شرائط ذکر سوی نه دی. او په کومه نسخه کي چي دغه شرائط ذکر سوی دی "لکه اوس په موجوده نسخه کي چي په راتلونکي عبارت کي ذکر سوی دی" په دې صورت کی بیا ددې حاشیه هیڅ یو ضرورت نسته.

قوله فهو الشكل آه: اقول اعلم: د څلورو شکلونو په راوړلو کي مختلفي نسخې وجود لری، او هره نسخه پر خپل ځای د صحت وجه لری. لهذا یوه موجوده نسخه ده چي نن صبا رائجه ده. او یوه نسخه هغه ده چي پر هغه صاحب یکروزی شرح لیکلې ده.

**موجوده نسخه داډول ده:** الاشكال اربعة ، لان الحد الاوسط ان كان محمولا في الصغرى و موضوعا في الكبرى فهو الشكل الاول، و ان كان محمولا فيهما فهو الشكل الثاني ، و ان كان موضوعاً فيهما فهو الشكل الثالث، و ان كان موضوعاً في الصغرى و محمولا في الكبرى فهو الشكل الرابع.

**هغه نسخه چي پر هغه یکروزی شرحه سوېده:** الاشكال اربعة لان الحد الاوسط ان كان محمولا في الصغرى و موضوعاً في الكبرى فهو الشكل الاول، و ان كان بالعكس فهو الرابع، و ان كان محمولا فيهما فهو الشكل الثاني، و ان كان موضوعا فيهما فهو الشكل الثالث. الشكل الرابع منها بعيد عن الطبع جداً.

**سوال:** په موجوده نسخه کي د کوم ترتیب خیال ساتل سوی دی؟

**جواب:** په موجوده نسخه کي د اولوالي دوهموالي، دريېموالي او د ځلورموالي خيال ساتل سوی دی. داډول چي اول، اول شکل بيا دوهم بيا دريېم بيا ځلورم شکل راوړل سوی دی.

**سوال:** شرح يکرزوی چي پر کومه نسخه د ايساغوجي ترسره سوېده د هغه نسخې چي کوم ترتيب دی په هغه کي د کوم شي خيال ساتل سوی دی؟

**جواب:** په هغه کي د اختصار خيال ساتل سوی دی داډول چي په هغه نسخه کي عبات داډول دی "ان كان محمولا في الصغرى و موضوعاً في الكبرى فهو شكل الاول"، او ددغه ورسته بيا داسي عبارت دی "و ان كان بالعكس فهو شكل رابع". او دغه عبارت د موجوده نسخې ددې عبارت پر ځای دی: " ان كان موضوعا في الصغرى و محمولا في الكبرى فهو الشكل الرابع". نو په موجوده نسخه کي ددې الفاظو (موضوعا في الصغرى و محمولا في الكبرى) اضافه سوېده، او په نسخه کي د ايساغوجي ( چي شرح يکروزی د هغه موافق ترسره سوېده ) دغه الفاظ نسته نو دغه نه دی مګر اختصار.

خلاصه داسوه چي د اول مقابل ځلورم وو، نو د اختصار په وجه دغه ځلورم د اول متصل ذکر سوی دی. او دريېم د ځلورم سره متصله دی داډول چي تر ځلورم مخکي دريېم وی نو په دغه وجه دريېم ذکرسوی دی. پاته دوهم شکل سو نو هغه په آخر کي ذکر سوی دی.

**سوال:** په دغه صورت کي دوهم شکل د اول څخه ډېر لری سو، داډول چي په شروع کي اول شکل او په آخر کي دوهم شکل ذکر سوی دی. نو ددې لری والي دپاره کومه توجيه سته؟

**جواب:** هو، ددغه لری والي سبب اختصار دی، څرنګه اختصار په دغه طريقه سره راتلي چي د اول څخه ورسته ځلورم بيا دريېم او بيا دوهم ذکر سي، نو په دغه وجه دوهم شکل د اول څخه لری ذکر سوی دی.

**سوال:** د موجوده نسخې او د صاحب د يکروزی د نسخه ترمينځ څه فرق وجود لری؟

**جواب:** په هغه کي اختصار وجود لری، او په موجوده نسخه کي اختصار نسته. او په نسخه کي د يکروزی زيات وضاحت تر موجوده نسخه لری، ځکه د شرح يکروزی د متن موافق دا الفاظ ويل سوی دی" دغه ځلورم شکل د طبعيت څخه ډېر لری دی"، او دغه خبره په موجوده

نسخه کي وجود نه لری. البته په موجوده نسخه کي بيا په بل اعتبار سره زيات وضاحت تر متن د شرحي يکروزی وجود لری ، دادول چي په هغه کي د دوهم، دريېم او څلورم شکل و اول شکل ته د ردولو طريقه او خبره ذکر سوې نه ده مګر په موجوده نسخه کي ذکر سوېده.

## عبارت

والَّذِي لَهُ طَبْعٌ مُسْتَقِيمٌ وَعَقْلٌ سَلِيمٌ لاَ يَحْتَاجُ إِلَى رَدِّ الثَّانِي إِلَى الْأَوَّلِ. وَإِنَّمَا يُنْتِجُ الثَّانِي عِنْدَ اخْتِلاَفِ مُقَدِّمَتَيْهِ بِالْإِيجَابِ وَالسَّلْبِ، وَ كُلِّيَّةِ الكُبْرَى. وَ الشَّكْلُ الْأَوَّلُ هُوَ الَّذِي يُجْعَلُ مِعَيَارًا لِلْعُلُومِ . فَنَورِدُهُ لِيُجْعَلَ دُسْتُورًا . وَلِيُسْتَنْتَجَ مِنْهُ المَطَالِبُ كُلُّهَا.

## ترجمه

کوم څوک چي د درست طبعيت مالک وی، او عقل يې سالمه وی، دغه کس و دې ته احتياج نه لری چي شکل دوهم و اول ته رد کړی. شکل اول هغه وخت نتيجه ورکوی چي دواړی مقدمې دده په ايجاب او سلب کي سره مختلفي وي. او کبری يې کليه وی. شکل اول د علومو دپاره معيار و ګرزول سو، په دغه وجه موږ دی دلته ذکر کوو ددې دپاره چي دی دستور او ترازو مقرر کړل سي، چي دده څخه ټولی نتائجې تر لاسه سي.

## تشريح

**سوال:** مصنف رحمه الله ولي ددغه څلورو شکلونو څخه صرف د اول شکل اقسام ذکر کړل او باقي يې ذکر نه کړه. ددې وجه څه ده؟

**جواب:** وجه يې داده چي د اول شکل ترتيب د هغه څه برابر دی د کوم چي طبعيت تقاضی کوي. او دوم دا چي دده نتيجه ورکول بدهي ده، و دليل ته محتاجه نه وی. نو دی يو قانون او ترازو لپاره د علومو و ګرزول سو. ددغه وجي مصنف دی سره دده د ټولو اقسامو سره ذکر کړی. نه نور څکه هغوی دغه ډول نه دي.

﴿فائده﴾: معيار په معني سره د ترازو دی، او دی د عربو ددې قول څخه اخيستل سوی دی 'عيرنا الدينار'ما دينار يو تر بل ورسته وزن کړه.او ميزان ورسته تر معيار ذکر کول دغه د تفسير دپاره دی.او مراد د علومو څخه د پاته درو شکلونو نتيجې دي. او دستور په معني د قانون دی نه په معني لغوي سره چي هغه آغه غټ وزير دی چي ده ته په مسائلو کي رجوع کيږي.

خلاصه حواشي ايوبي

قوله او بعکس المقدمتين الخ : څلورم شکل و اول شکل ته په عکس د صغری او کبری رديږی.

مثال: " کل انسان حيوان "يعني هر انسان حيوان دی، "کل ناطق انسان" يعني هر ناطق انسان دی. اوس دغه څلورم شکل دی، دده ردونه و اول شکل ته په عکس سره د مقدمتينو تر سره کيږی، داړول "بعض الحيوان انسان "دغه عکس د صغری دی، " بعض الانسان ناطق" دغه عکس د کبری دی، نو نتيجه دا ورکوی " بعض الحيوان ناطق".

سوال: طبع، عقل، نفس او روح دغه ټوله يو شي دي او که ددوی ترمينځ کوم فرق وجود لری؟

جواب: دوی ټوله يو دی مګر تر مينځ يې اعتباری فرق وجود لری. هغه شي چي په هغه سره سوچ او تعقل د شي حاصليږی دغه ته عقل ويل کيږی او په دې حيث چي په ده کي د شيانو نقش کېدل راځي دغه ته طبع او ذهن ويل کيږی. او په دې حيث چي دی موافق د شيطان سره وی، او د هغه سره ملګری کوی نو دغه ته بيا نفس ويل کيږی. او په دې حيث چي دی د الهي احکامو موافقت خپلوی نو دغه ته بيا روح ويل کيږی.

قوله الي رد الثاني الخ : کوم څوک چي د سالم طبعيت او ذهن خاوند وی هغه و دې ته احتياج نه لری چي دوهم شکل و اول ته رد کړی.

مثال: " کل انسان حيوان"، دغه صغری ده " لاشيء من الحجر بحيوان " دغه کبری ده، نو نتيجه دا ورکوی " لاشي من انسان بحجر". دغه دوهم شکل دی، او اوسط په دواړو کي محمول واقع سوی دی. او دغه شکل و اول ته د ردولو ضرورت نسته ، ځکه "حجر" د حيوان مباين او د هغه سره ضديت لری، او حيوان بيا عام دی، او افراد لری، د هغو څخه يو فرد انسان دی، او

دا قاعده ده چي هغه شي چي د عام سره مباين وى هغه شي ددغه شي د افرادو سره هم مباين وى. نو پخپله دا معلومه سوه چي انسان ډبره نه ده، او ردولو ته يې ضرورت او احتياج نسته.

انما ينتج الثاني عند اختلاف مقدمتيه الخ : **سوال:** دوهم شكل چي نتيجه وركوى ددغه دپاره كوم شرط وجود لرى او كه نه؟

**جواب:** ددغه دپاره دوه شرطه وجود لري.

**اول شرط:** په اعتبار د كيف يوه مقدمه به د هغه بلي څخه مختلفه وى. داډول كه چيري يوه مؤجبه نو هغه بله به سالبه وي. كه چيري داډول نه سي بلكه دواړى مؤجبه سي نو بيا په نتيجه كي اختلاف راځي داډول يو واري نتيجه د مؤجبه په صورت كي صادق وګرزى، او بل واري به بيا په صورت كي د سالبه صادقه وګرزى.

**مثال:** "كل انسان حيوان". "كل ناطق حيوان". دلته نتيجه د مؤجبه په صورت كي رښتني راځي "كل انسان ناطق". او كه په دغه صورت كي چي مقدمې دواړي مؤجبې وي موږ كبرى بدله كړو او وايو "كل انسان حيوان. و كل فرس حيوان". نو دلته نتيجه د سالبه په صورت كي رښتني راځي "لا شى من الانسان بفرس". دغه ډول سالبه د مثال په توګه "لا شى من الانسان بحجر" . "لا شى من الفرس بحجر". نو دلته نتيجه د سالبه په صورت كي رښتني راځي "لا شى من الانسان بفرس". او كه چيري په دغه صورت كي موږ كبرى بدله كړو او داډول ووايو "لا شى من الانسان بحجر" ." لاشى من الناطق بحجر". نو تنيجه دمؤجبه په صورت كي رښتني راځي "كل انسان بناطق".
ورسته تر مثاله دا خبره ثابته سوه كه چيري صغرى او كبرى د ايجاب او سلب په اعتبار سره مختلفي نه وي نو بيا به په نتيجه وركولو كي اختلاف راسي، او دغه ده نتيجه نه وركولو دليل دى. نو ددغه څخه دا معلومه سوه چي دغه قياس نتيجه نه وركوي. بلكه د نتيجه وركولو څخه خالي دى. ځكه نتيجه لازم د قياس سره وى، لكه څه ډول دغه د تعريف څخه د قياس معلوميږي ﴿متى سلمت لزمت عنهالذاته قولا آخر﴾. لهذا قياس ملزوم او نتيجه لازم ده. او ملزوم سبب لپاره د وجود د لازم وى. لهذا د نتيجه سبب ذات د قياس دى ﴿لذاتها قولا آخر﴾ او هغه شي چي سبب يې ذات وي هغه د ذات څخه نه جلا كيږي. نو نتيجه د ذات څخه د قياس نه جلا

کبرۍ، او حال دا چي په صورت کي د يووالي د مقدمو په اعتبار د ايجاب او سلب نتيجه د قياس څخه جلا و ګرزی، داډول چي صورت د قياس يو دی (دواړي مقدمې مؤجبه يا سالبه دي) مګر نتيجه مختلف ده (کله مؤجبه او کله سالبه وی لکه تا چي دا وپيژندل). نو د دغه اختلاف څخه دا معلومه سوه چي دغه نتيجه د قياس نه ده، نو دغه قياس بيله کومي نتيجه راغلي او د قياس بېله نتيجه راتلل باطل دی، نو معلومه سوه چي مقدمې به د ايجاب او سلب په اعتبار مختلف وی نه يو.

**دوم شرط:** کبرى به کليه وی. ځکه که کليه نه سي، نو بيا به جزئيه وی، بيا عام تر دې دامؤجبه او که سالبه وی، نو بيا هم په نتيجه کي اختلاف راځي، داډول که چيري کبرى مؤجبه وی د مثال په توګه "لا شی من الانسان بفرس". "و بعض الحيوان بفرس" نو نتيجه د مؤجبه جزئيه په صورت کي رښتنې راځي "بعض الحيوان انسان". اوس په دغه صورت کي که چيري موږ کبرى په دې قول سره بدله کړو "بعض الصاهل فرس". نو بيا نتيجه د سالبه جزئيه په صورت کي رښتنې راځي "بعض الانسان ليس بصاهل". او که چيري کبرى سالبه سي د مثال په توګه " کل انسان حيوان". "و بعض الجسم ليس بحيوان". نو نتيجه د مؤجبه جزئيه په صورت کي رښتنې راځي "بعض الانسان بجسم". او په دغه صورت کي که چيري موږ کبرى بدله کړو او ووايو "کل انسان حيوان". "بعض الحجر ليس بحيوان". نو نتيجه د سالبه جزئيه په صورت کي رښتنې راځي "بعض الانسان ليس بحجر". پس دا ثابته سوه چي د دوم شکل د نتيجه ورکولو دپاره دا شرط دی چي مقدمې به په اعتبار د کيفيت مختلفي او کبرى به کليه وي.

**سوال:** موږ دا خبره نه منو چي د اول شکل نتيجه ورکول يو بدهي خبره ده، ځکه د دغه شکل نتيجه ورکول پر دور باندی مشتمله ده، ځکه نتيجه د کبرى په کلي والي باندي موقوفه ده ﴿ځکه د شکل اول د نتيجه ورکولو دپاره شرط کليت د کبرى دی. نو نتيجه مشروط او د کبرى کلي والي شرط دی. او مشروط پر شرط باندي موقوفه وی﴾. او د کبرى کلي والي په نتيجه باندي موقوفه دی. دليل دادی چي کبرى کله مؤجبه وی د مثال په توګه "کل انسان حيوان". و کل حيوان جسم" نو نتيجه دا وکوی " کل انسان جسم". او کله سالبه وی د مثال په توګه " کل انسان جسم. و لا شی من الحيو ان بحجر" نو نتيجه دا ورکوی "لا شی من الانسان بحجر". نو د کبرى کلي

والي هغه وخت چي مؤجبه وي داده چي اکبر و ټولو افرادو ته د اوسط ثابته وي. ځکه په کبرى كي اوسط موضوع او محمول يې اكبر وي او محمول و ټولو افرادو ته د موضوع په کلیه کي ثابته وي نو اكبر و ټولو افرادو ته د اوسط ثابت وي، او د اوسط د افرادو څخه یو فرد اوسط دی "ځکه په ذکر سوي مثال کي صغرى داده "كل انسان حيوان". نو انسان یو فرد د حیوان دی. اودغه حیوان اوسط دی. لهذا انسان د حیوان یو فرد دی نو د اوسط یو فرد اصغر سو". لهذا اکبر د اوسط ټولو افراد ته ثابته وي نو دغه اکبر به و اصغر ته هم ثابته وي ځکه دی یو فرد د اوسط دی. او د اکبر و اصغر ته ثا بتېدل هم دغه نتيجه ده، نو د کبرى كلي والي په نتيجه موقوفه سو. دغه ډول چي كبرى سالبه وي، نو دا عبارت د سلب څخه د اكبر د ټولو افرادو څخه د اوسط وي. او د اوسط د افرادو څخه یو فرد اصغر هم دی نو اکبر به د اصغر څخه هم سلب وي او دغه بعينه نتيجه ده. لهذا د کبرى کلي والي په نتيجه موقوفه سو. او نتیجه په کلي والي د کبرى موقوفه سوه، نو نتيجه په خپل ځان موقوفه سوه، او دغه باطله خبره ده؟

**جواب:** موږ د کبرى کلي والي په نتيجه باندي موقوف بلل نه منو. ځکه د اكبر ثابت والي لپاره د اصغر او دغه ډول سلبول د اكبر د اصغر څخه په كبرى كي په عنوان سره د حدى اوسط دی. او د اکبر ثابت والي لپاره د اصغر او دغه ډول سلبول د اکبر د اصغر څخه په نتيجه کي په عنوان سره د اصغر دی. او دا جائزه ده چي اول بدهي، معلوم او دوم نظري او معلوم نه وي. لهذا نتيجه موقوفه په کلي والي د کبرى سوه، او د کبرى کلي والي په نتيجه موقوفه نه سو. نو دور نه راغلي نو په شکل اول سره په مطلوب باندي دليل پيشول لازم دور لره نسو.

او دغه ډول دور هم نه راځي، ځکه نتيجه په دې حيث سره واخيستل سي چي د اصغر څخه په حدى اوسط سره تعبير و نسي، په دغه حيث نتيجه پر کلي والي باندي د کبرى موقوفه ده، او د کبرى كلي والي پر نتيجه باندی هغه وخت موقوفه دی چي د اصغر څخه تعبير په حدى اوسط سره وسي، لهذا نتيجه پر کلي والي باندی د کبرى په يوه حيث او کلي والي د کبرى پر نتيجه باندی بیا په بل حیث سره موقوفه دی، لهذا دلته تغاير د جهت وجود لری، په دغه وجه دور نه راځي.

**مثال:** څه وخت چي د ذات څخه د عالم تعبير په متغير سره وسي نو بيا دا خبره معلومه ده چي حدوث و ذات د عالم ثابته دی، او څه وخت چي ددغه ذات څخه د عالم، تعبير په عالم سره وسي نو بيا معلوم نه دی. لهذا يو ذات په يوه اعتبار سره معلوم او په بل اعتبار سره بيا معلوم نه دی.

**سوال:** معيار و څه ته ويل کيږی؟

**جواب:** معيار په لغت کي پيمانې ته ويل کيږی، او په اصطلاح کي و شکل ته ويل کيږی.

**سوال:** اول شکل ته ولي معيار وويل سوه؟

**جواب:** څرنګه په پيمانه سره د شي اندازه او تول معلوميږی دغه ډول په شکلي اول سره د نورو پاتو شکلونو نتيجه معلوميږی، لهذا شکل اول او حقيقي پيمانه په دې کي سره شريک دي چي په دوی دواړو سره مجهول شي معلوميږی.

## عبارت

وَشَرْطُ إِنْتَاجِهِ إِيجَابُ الصُّغْرَى وَكُلِّيَّةُ الْكُبْرَى. وَضُرُوبُهُ الْمُنْتِجَةُ أَرْبَعَةٌ : الضَّرْبُ الْأَوَّلُ: كُلُّ جِسْمٍ مُؤَلَّفٌ وَكُلُّ مُؤَلَّفٍ مُحْدَثٌ فَكُلُّ جِسْمٍ مُحْدَثٌ . الثَّانِي: كُلُّ جِسْمٍ مُؤَلَّفٌ وَلاَ شَيْءَ مِنَ الْمُؤَلَّفِ بِقَدِيمٍ، فَلاَ شَيْءَ مِنَ الْجِسْمِ بِقَدِيمٍ . الثَّالِثُ: بَعْضُ الْجِسْمِ مُؤَلَّفٌ وَكُلُّ مُؤَلِّفٍ حَادِثٌ فَبَعْضُ الْجِسْمِ حَادِثٌ .

## ترجمه

د شکلي اول د نتيجې ورکولو دپاره شرط دادی چې صغری به مؤجبه او کبری به کليه يې وی. د شکلي اول نتيجه ورکونکي قسمونه څلور دي. اولني قسم دادی دی " هر جسم مرکب دی". " او هر مرکب حادث وی". " نو هر جسم حادث دی". او دوهم قسم دادی " هر جسم مرکب دی". " او يو مرکب هم قديم نه دی ". "نو يو جسم هم قديم نه دی ". او دريېم قسم دادی " بعضې جسم مرکب دی". " او هر مرکب حادث دی" نو " بعضې جسم حادث دی".

## تشريح

دشکل اول هغه صورتونه چي ددوی رتلل ممکن وی شپاړس دي. او دغه لاندی دنقشې په صورت کي وړاندی کيږي

صغری: مؤجبه کليه، مؤجبه جزئيه، سالبه کليه، سالبه جزئيه

کبری: مؤجبه کليه، مؤجبه جزئيه، سالبه کليه، سالبه جزئيه

صغری: مؤجبه کليه +۱: کبری: مؤجبه کليه،۲: جزئيه،۳: سالبه کليه،۴: جزئيه

صغری: مؤجبه جزئيه۱+: کبری: مؤجبه کليه،۲: جزئيه،۳: سالبه کليه،۴: جزئيه

صغری: سالبه کليه +۱: کبری: مؤجبه کليه،۲: جزئيه،۳: سالبه کليه،۴: جزئيه

او ددغه څخه څلور قسمونه نتیجه ورکونکي دي، او باقي ساقط سوي دي او هغه لاندي راتلونکي دي.

| صغری | کبری | نتیجه |
|---|---|---|
| مؤجبه کلیه | مؤجبه کلیه | مؤجبه کلیه |
| کل جسم مؤلف | کل مؤلف محدث | فکل جسم محدث |
| صغری | کبری | نتیجه |
| مؤجبه جزئیه | مؤجبه کلیه | مؤجبه جزئیه |
| بعض الجسم مؤلف | کل مؤلف محدث | فبعض الجسم مؤلف |
| صغری | کبری | نتیجه |
| مؤجبه کلیه | سالبه کلیه | سالبه کلیه |
| کل جسم مؤلف | لا شی من المؤلف بقدیم | فلا شی من الجسم بقدیم |
| صغری | کبری | نتیجه |
| مؤجبه جزئیه | سالبه کلیه | سالبه جزئیه |
| بعض الجسم مؤلف | لا شی من المؤلف بقدیم | فبعض الجسم لیس بقدیم |

او ساقط سوی صورتونه لاندی وړاندی کیږی.

| |
|---|
| مؤجبه کلیه: 1: کبری: مؤجبه جزئیه: ۲: سالبه جزئیه |
| صغری مؤجبه جزئیه: کبری: ۱: مؤجبه جزئیه، ۲: سالبه جزئیه |
| صغری: سالبه کلیه + 1: کبری: مؤجبه کلیه، ۲: جزئیه، ۳: سالبه کلیه، ۴: جزئیه |
| صغری: سالبه جزئیه + 1: کبری: مؤجبه کلیه، ۲: جزئیه، ۳: سالبه کلیه ۴: جزئیه |

د شکل اول د نتیجه ورکولو دپاره دوه شرطه دي.

**اول شرط:** د صغرى مؤجبه كېدنه: كه چيري داډول نه سي بلكه سالبه سي نو بيا په نتيجه كي اختلاف راځي داډول يو واري د نتيجه به د مؤجبه په صورت كي صادقه و ګرزى، او بل واري به بيا نتيجه د سالبه په صورت كي صادق و ګرزى.

**مثال:** "لا شى من الانسان بفرس". و "كل فرس حيوان". نو دلته نتيجه د مؤجبه په صورت كي رښتنې راځي "كل انسان حيوان". او كه په دغه صورت كي صغرى سالبه و ګرزى، او موږ كبرى په خپل دې قول سره بدله كړو، او وايو "كل انسان حيوان". "و كل فرس صهال". نو دلته نتيجه د سالبه په صورت كي رښتنې راځي "لا شى من الانسان بصهال".

**دوم شرط:** كبرى به كليه وى. ځكه كه چيري كليه نه سي نو بيا به په نتيجه كي اختلاف راسي. داډول كه چيري كبرى مؤجبه وى د مثال په توګه "كل انسان حيوان". و "بعض الحيوان بفرس" نو نتيجه د سالبه په صورت كي رښتنې راځي "لا شى من الانسان بفرس". اوس په دغه صورت كي كه چيري موږ كبرى په دې قول سره بدله كړو "بعض الحيوان ضاحك". نو بيا نتيجه د مؤجبه كليه په صورت كي رښتنې راځي "كل انسان ضاحك". پس دا ثابته سوه چي د اول شكل د نتيجه وركولو لپاره دا شرط دى چي صغرى به مؤجبه او كبرى به كليه وي. كه چيري داډول نه سي نو بيا به په نتيجه وركولو كي اختلاف راسي، او دغه ده نتيجه نه وركولو دليل دى، نو ددغه څخه دا معلومه سوه چي دغه قياس نتيجه نه وركوي، بلكه د نتيجه وركولو څخه خالي دى. ځكه نتيجه لازم د قياس سره وى لكه څه ډول دغه د تعريف څخه د قياس معلومېږي ﴿متى سلمت لزمت عنهالذاته قولا آخر﴾. لهذا قياس ملزوم او نتيجه لازم ده. او ملزوم سبب لپاره د وجود د لازم وى. لهذا د نتيجه سبب ذات د قياس دى ﴿ لذاتها قولا آخر ﴾، او هغه شي چي سبب يې ذات وي هغه د ذات څخه نه جلا كيږي، نو نتيجه د ذات څخه د قياس نه جلا كيږي، حالانكه په صورت كي د نه مؤجبه والي د صغرى او د نه كلي والي د كبرى نتيجه د قياس څخه جلا سوه، داډول چي صورت د قياس يو دى مګر نتيجه مختلف ده (كله مؤجبه او كله سالبه وى لكه تا چي دا وپيژنده) نو ددغه اختلاف څخه دا معلومه سوه چي دغه نتيجه د قياس نه ده نو دغه قياس بېله كومي نتيجه راغلي، او د قياس بيله نتيجه راتلل باطل دى، نو معلومه سوه چي مقدمې به د ايجاب او سلب په اعتبار مختلف وى نه يو.

صغری مؤجبه کلیه، مؤجبه جزئیه، سالبه کلیه، او سالبه جزئیه کېدای سي. او کبری هم څلور ډول کېدای سي، کبیر مؤجبه کلیه، مؤجبه جزئیه، سالبه کلیه او سالبه جزئیه. نو څلور چي په څلور کي ضرب کړې نو ددغه څخه شپاړس قسمه حاصلیږي چي تفصیل یې لاندی راتلونکي دي.

**صغری**: مؤجبه کبری + **کبری**: ۱: مؤجبه کلیه، ۲: مؤجبه جزئیه، ۳: سالبه کلیه، ۴: جزئیه.

**صغری**: مؤجبه جزئیه+ **کبری**: ۵: مؤجبه کلیه، ۶: مؤجبه جزئیه، ۷: سالبه کلیه، ۸: جزئیه.

**صغری**: سالبه کلیه + **کبری**: ۹: مؤجبه کلیه، ۱۰: مؤجبه جزئیه، ۱۱: سالبه کلیه، ۱۲: جزئیه.

**صغری**: سالبه جزئیه + **کبری**: ۱۳: مؤجبه کلیه، ۱۴: جزئیه، ۱۵: سالبه کلیه. ۱۶: جزئیه.

او څه وخت چي د صغری مؤجبه والي شرط سو نو آته قسمه د مینځه لاړل، هغه دادی صغری سالبه کلیه وی، او کبری مؤجبه کلیه، جزئیه، سالبه کلیه، او سالبه جزئیه وی. صغری سالبه جزئیه وی، او کبری مؤجبه کلیه، جزئیه، سالبه کلیه، او سالبه جزئیه وی. نو دغه آته قسمونه سوه. او څه وخت چي د کبری کلیت شرط سو نو څلور نور قسمونه د مینځه لاړل، هغه دادی: صغری مؤجبه کلیه او کبری موجبه جزئیه او سالبه جزئیه وی. او صغری موجبه جزئیه او کبری مؤجبه جزئیه او یا سالبه جزئیه وی. نو دغه څلور قسمونه دي. لهذا ۱۲ قسمونه د اعتبار وړ نه دی، او څلور قسمونه د اعتبار وړ دي.

**سوال**: د شکلی اول د څلورو نتیجه ورکونکي قسمونو څخه اول قسم کوم دی؟

**جواب**: هغه دادی صغری مؤجبه کلیه او کبری هم مؤجبه کلیه وی، او ددغه نتیجه هم مؤجبه کلیه وی. او ددغه مثال په متن کي ذکر سوی دی. او دغه قسم ددغه څلورو قسمونو څخه ترټولو غوره قسم دی، ځکه دغه قسم پر ایجاب او کلیت مشتمله دی. او دغه دواړه غوره تر خپلو مقابلو دي، د کلیت مقابل جزئیت او د ایجاب مقابل سلب دی، کلیت تر جزئیت او ایجاب تر سلب غوره دی. څرنګه دغه قسم پر دواړو غورو شیانو مشتمله دی په دغه وجه تر پاته درو قسمونو غوره دی.

**سوال**: دغه څلورو قسمونه څخه هر یوه ته ولي ضرب ویل سوی دی؟

**جواب:** ځکه ضرب په لغت کي نوع او قسم ته ویل کیږی . څرنګه هر یو ددغه څلورو څخه یو قسم د شکل اول دی په دغه وجه دغه ته ضرب وویل سو .

**سوال:** دوهم قسم د څلورو نتیجه ورکونکو اقسامو څخه د شکلي اول کوم یو دی؟

**جواب:** هغه دادی: صغری مؤجبه کلیه او کبری سالبه کلیه وی. او نتیجه ددغه سالبه کلیه وی.

**سوال:** ددغه قسم نتیجه ولي سالبه وی؟

**جواب:** ځکه نتیجه د مقدمو څخه د هغې تابع وی چي هغه کمزورې د مقدمو څخه وی ، د مقدمو څخه یوه موجبه او بله سالبه وی، څرنګه سالبه کمزورې تر موجبه وی په دغه وجه نتیجه تابع د سالبه راغلل.

**سوال:** دریم قسم کوم یو دی؟

**جواب:** هغه دادی: صغری مؤجبه جزئیه او کبری مؤجبه کلیه وی. او نتیجه ددغه جزئیه وی. ځکه مقدمه د مقدمو څخه د هغې کمزورې تابع وی، او د مقدمو څخه یوه جزئیه او یوه کلیه ده، کلیت غور او جزئیت کمزوری دی، په دغه وجه نتیجه د جزئیه د تابع والي په وجه جزئیه راځي.

## عبارت

الرَّابِعُ: بَعْضُ الْجِسْمِ مُؤَلَّفٌ وَلاَ شَيْءَ مِنَ الْمُؤَلَّفِ بِقَدِيمٍ فَبَعْضُ الْجِسْمِ لَيْسَ بِقَدِيمٍ . وَالْقِيَاسُ الإِقْتِرَانِيُّ : إِمَّا أَنْ يَتَرَكَّبَ مِنْ حَمْلِيَّتَيْنِ كَمَا مَرَّ. وَإِمَّا مِنْ مُتَّصِلَتَيْنِ : كَقَوْلِنَا: إِنْ كَانَتِ الشَّمْسُ طَالِعَةً فَالنَّهَارُ مَوْجُودٌ وَكُلَّمَا كَانَ النَّهَارُ مَوْجُودًا فَالْأَرْضُ مُضِيئَةٌ يُنْتِجُ إِنْ كَانَتِ الشَّمْسُ طَالِعَةً فَالْأَرْضُ مُضِيئَةٌ.

## ترجمه

څلورم قسم دادی "بعضې جسم مرکب دی"، "یو شي د مرکب قدیم نه وی"، "نو بعضې جسم قدیم نه دی"، او قیاسي اقتراني به یا مرکب د حملیو څخه وی، لکه دغه خبره چي مخکي تېره سوه. او یا به مرکب د متصلو څخه وی، لکه زموږ دا قول "که چیری لمر راختلي وی نو ورځ به موجوده وی"، "او څه وخت چي لمر راختلي وی نو مځکه به روښانه وی". "نو مځکه روښانه ده". نتیجه دا سوه "که چیری لمر راختلي وی نو مځکه به روښانه وی".

## تشریح

**سوال:** د قیاس اقتراني چي په شرطیاتو کي راسي د هغه څخه څه مراد دی هغه چي محض د شرطیاتو څخه جوړ وي څرنګه چي دغه خبره د مصنف ... قول څخه "الکائن فی الشرطیة" معلومیږی یا بل څه دده څخه مراد دی؟

**جواب:** نه، بلکه د قیاسي اقتراني په شرطیاتو ددغه څخه هغه مراد دی چي هغه محض د حملیاتو څخه جوړ نه وي، بیا عام تر دي محض د شرطیاتو څخه جوړ وی، او که د شرطیاتو او حملیاتو ددوارو څخه جوړ وی.

**سوال:** دلته د مصنف په عبارت کي د اقسامو څخه د قیاس اقتراني څه مراد دی؟

**جواب:** د اقسامو څخه "کوم چي په تقسیم کي د هغه قیاس اقتراني راغلي دی چي هغه په حملیو کي وي" مراد هغه څخه څلور شکل دی، د کوم بیان مخکي تېر سو. او د اقسامو څخه "کوم چي په قیاس اقتراني په شرطیاتو کي راغلي دی" د هغه څخه اقسام مراد دی نه هغه څلور تېر سوی اشکال، ځکه قیاس اقتراني حملي اشکال لری خو اقسام نه لری، بلکه د هغه یو قسم وي نه نور. باقي پاته اقتراني شرطي سو نو هغه اقسام لری. البته د اقتراني حملي په اشکالو

باندي د اقسامو اطلاق په دې وجه وسو چي هغه اقسام هم شکله، د اقتراني شرطي د اقسامو سره دی، د دغه مشاکلت د وجي د غه اطلاق سوي دی.

**سوال:** قياس اقتراني شرطي څو اقسام لری؟

**جواب:** پنځه قسمونه دي او هغه لاندي راروان دي.

**اول:** هر هغه قياس اقتراني شرطي چي مرکب د دو متصلو څخه وي. او په دغه کي څلور سره اشکال راتلای سي. ځکه که چيري هغه جزء چي د دواړو مقدمو ترمينځ شريک وی هغه د صغری په طرف کي تالي او د کبری په طرف کي مقدم واقع سوی وی نو دغه شکل اول دی. او د دغه د پاره هغه شرائط دي کوم چي د قياس اقتراني حملي د اول شکل د پاره ول.

**مثال:** اول شکل: **صغری:** "کلما كانت الشمس طالعة فالنهار موجود".

**کبری:** "و کلما كان النهار موجودا فالارض مضئية" . نو نتيجه دا ورکوي: " کلما كانت الشمس طالعة فالارض مضئية". اوس لوړ په توره کرښي کي حد اوسط تالي په صغری او مقدم په کبری کي راغلی دی.

**دويم شکل:** که چيري په دواړو کي تالي واقع سوې وی نو دغه دويم شکل دی.

**مثال:** **صغری:** "کلما كانت الشمس طالعة فالنهار موجود". **کبری:** " ليس البتة اذا كان الليل حاصلا فالنهار موجود". نو نتيجه دا ورکوي : "ليس البتة اذا كان الشمس طالعة فالليل حاصل". اوس لوړ په توره کرښه کي حد اوسط تالي په صغری او کبری دواړو کي واقع سوي دی.

**دريم شکل:** که چيري په دواړو کي مقدم واقع سوي وو نو دغه دريم شکل دی.

**مثال:** **صغری:** "کلما كانت الشمس طالعة فالنهار موجود". **کبری:** "و کلما كانت الشمس طالعة فالارض مضئية". نو نتيجه دا ورکوی: "قد يكون اذا كان النهار موجودا فالارض مضئية". اوس لوړ په توره کرښه کي حد اوسط مقدم په صغری او کبری دواړو کي واقع سوي دی.

**څلورم شکل:** مقدم په صغری او تالي په کبری کي واقع سوی وي.

**مثال:** **صغری:** "کلما كانت الشمس طالعة فالنهار موجود". **کبری:** "و کلما كان الارض مضئية فالشمس طالعة". نو نتيجه دا ورکوي: " قد يكون اذا كان النهار موجودا فالارض مضئية ".

**سوال:** د دغه اول قسم د قياس اقتراني شرطي نتيجه څه راځي؟

**جواب:** دا محض متصله راځي، ځکه په دغه صورت کي مقدمې دواړي متصلې وي. او ددغه نتيجې مقدم، مقدم د هغه صغرى وى چي هغه متصله وى. او تالي يې تالي د كبرى متصله وى.

**سوال:** ددويم قياس نتيجه څرنګه راځي؟

**جواب:** ددغه شكل نتيجه سالبه راځي. ځكه مخكي دا تيره سوه چي ددويم شكل شرط دادى چي صغرى او كبرى د ايجاب او سلب په حيث يو د بل سره به مختلفي وي. او نتيجه د اخس ارزل تابع وى. نو نتيجه به د صغرى او كبرى څخه د ارزل تابع وى چي هغه په دويم شكل كي سالبه ده. او ددغه شكل د نتيجې مقدم، مقدم د متصلې صغرى وى. او تالي د نتيجه مقدم د كبرى متصله وى.

**سوال:** ددريم او څلورم شكل څه حال وى؟

**جواب:** په دريم شكل كي مقدم د نتيجې تالي د صغرى متصله او تالي د نتيجه تالي د كبرى وى. او په څلورم شكل كي مقدم د نتيجه دصغرى تالي او تالي د نتيجه مقدم د كبرى وى.

**سوال:** مراد د متصله د متصلوالي څخه څه دى؟

**جواب:** ددوى څخه مراد لزوميې دي ځكه د اتفاقيو څخه قياس نسي جوړيدلاى. ځكه د لزوميه او د اتفاقيه ترمينځ داډول فرق موجود دى چي په لزوميه كي حكم په اعتبار سره د هغو اوضاعو وى چي د هغه جمعوالي د مقدم سره ممكن وى. او ددغه معلوميدل په حد اوسط سره كيږي، په خلاف د اتفاقيه، په هغه كي حكم په هغه اوضاعو باندي كيږي چي هغه په اعتبار د نفس الامر او د واقع وي. نو مفهوم د كبرى په دغه صورت كي داوي چي اكبر په ټولو واقعي اوضاعو سره اصغر ته ثابته دى او ددغه واقعي اوضاعو څخه يو اصغر دى. نو وجود داكبر و اصغر ته ثابتيدل معلوم سو، كه څه هم و اوسط ته كتل ونسي. نو ددوى په مابين كي د اوسط په راوړلو سره هيڅ يو نا معلوم شي نه معلوميږي. نو بيا دوى څخه قياس نه جوړيږى ځكه په قياس سره نا معلوم شي حاصليږي. چي هغه دلته نسته.

**سوال:** دلزوميو څخه دشكل اول مركب والي صحى نه دى ځكه دده څخه په مركب سوي قياس كي هيڅ فائده نسته. ځكه دى نتيجه دروغجنه وركوى. د مثال په توګه څه وخت چي

دوه فرد وی نو دغه دوه به بیا عدد وی ﴾ اوس دغه قضیه صادقه ده ځکه د شرطیه لزومیه د صادقوالي مدار په ثابت والي د علاقې په مابين کي د مقدم او د تالي وی نه په صدق واقعي باندي. او دلته دغه علاقه ثابته ده داډول چي یو شرط "کلما کان الاثنان فردا" او بل جزاء "کان عددا" دی. د شرط او د جزاء په ما بین کي لزوم وی. او د شرطيې رشتيا والي موقوفه په ثبوت د دغه لزوم وی عام تر دې دغه شرط او جزاء واقعي وي او که نه وي ﴾ او څه وخت چي دوه یو عدد سو نو دغه به زوج وی. ﴿ اوس دغه هم صادقه ده دا ډول څه وخت چي دوه عدد سي نو هغه به زوج وی. اوس د دو جفت والي په طریقه د لزوم دی دا هغه وخت چي عدد دلته صرف دوه سي. نو څه وخت چي یو عدد موجود سي نو هغه به جفت وی. ﴾. لهذا دغه قیاس رښتني دی مګر نتیجه ئې دروغجنه ده هغه داده " څه وخت چي دوه فرد سي نو زوج به سي" اوس دغه دروغجنه ده او تالي د مقدم سره بالکل لازمه نه ده ځکه که چیري لازم سي نو : نقیضینو یو ځای والي په یوه شي کي راسي او یو ځای والي د نقیضینو باطل دی نو دلته تالي لازم والي د مقدم سره باطل دی. نو دغه قیاس چي هغه دغه نتیجه ورکونکي وی ۱ م صحی نه دی؟

**جواب:** د لزومیه په صادقیدو کي چي کوم صادق والي معتبر دی که چیري هغه واقعي او نفس الامری صادقوالي وی نو بیا مو ږ د صغری **"کلما کان الاثنان فردا کان عددا"** صادقوالي نه منو. ځکه د اثنین مفرد کیده بناء په دې باندي دی چي د فرد عدد کیده رښتني سي مګر دغه قول په دې تقدیر باندي چي دوه مفرد سي صادق نه دی ځکه په دغه تقدیر دوه فرد دی مګر عدد نه دی. ځکه په واقع کي هغه دوه عدد دی چي هغه زوج وی. او هغه دوه چي فرد وی هغه عدد نه دی. ځکه په دنیا کي یو داسي عدد وجود نه لري چي هغه دوه هم وی او مفرد هم وی. لهذا دغه صغری په واقع کي صحی نه ده. او که چیري په لزومیه کي فرضي او اعتباري صادقوالي معتبر وی لکه دغه سائل چي وایې نو بیا مو ږ په دغه تقدیر باندي حاصلي سوې نتیجه دروغجنه نه بولي او نه دروغجن والي یې منو. ځکه هغه سړی چي هغه دوه فرد بولي او د دغه اقرار کوي نو بیا به هغه دغه دوه زوج هم بولي ځکه التزام د هغه شي چي هغه د واقع او نفس الامر سره برابر وی اولی تر هغه شي تر التزام دی چي هغه د واقع سره

برابر نه وی نو ددو د زوج بللو التزام کول    اولی تر دې دی چې دغه دوه فرد وبلې. نو ځه وخت چې دغه کس د غیر اولی التزام و کړي نو دغه به د اولي التزام په طریق اولی سره کوي.

**دوم:** هر هغه اقتراني شرطي چې مرکب ددو منفصلو څخه وی.لکه زموږ دا قول "همیشه عدد به زوج یا فرد وی.او هر زوج به زوج الزوج یا زوج الفرد وی." نو نتیجه دا سوه "هر عدد به فرد ،زوج الزوج یا زوج الفرد وی". ځکه په منفصله کي دا ضروري ده چې یو د جزئینو څخه به واقع وی ولي چې په منفصله کي د یو شي د جزئینو څخه خالي کیده منع دی عام تر دې جمع کیده یې هم منع وی او که نه وی. لهذا ذکر سوي مثال د دوو منفصلو حقیقیو څخه مرکب دی. او دلته لکه څرنګه چې جمع والي د فرد او د زوج په یوه عدد کي راتلل منع دی دغه ډول د یو عدد ددوی څخه خالي والي هم منع دی .لهذا په یوه عدد باندي زوج الزوج او زوج الفرد نه یو ځای کیدای او دغه ډول یو عدد څني خالي کیدای نسي. لهذا ددغه نتیجه به منفصله مانعة الخلو وی. ځکه ددغه نتیجه یوه حصه د اولي منفصله هغه جزء دی چې هغه ددویمي مقدمې سره شریک والي " فرد" نه لري.او ددې دویم جزء هغه دی چې هغه زوج او مشترک ددویمي مقدمه سره دی.او دغه زوج بیا په دوه قسمه دی. او ددغه قسمو څخه به اول یا دویم وی. که چیري اول وو نو دغه بیا دویم جزء د نتیجه" زوج الزوج" وی او که چیري دویم قسم وو نو دغه بیا دریم جزء د نتیجه " زوج الفرد" وی. لهذا نتیجه د درو اجزاؤ څخه مرکبه وی.( ۱ ): هغه جزء چې مشترک ددواړو مقدمو په ما بین کي نه وی او هغه فرد دی.او دوې نتیجې وي چې هغه د اولي منفصله دهغه جزء څخه چې مشترک ددویمي منفصلې سره " زوج" وی. او ددویمي منفصلې د هر جزء څخه د قیاس جوړولو څخه حاصل سوې وِی. او هغه دوه قیاس دادي "العدد زوج. و کل زوج فهو زوج الزوج". نو نتیجه دا سوه(۲) "العدد زوج الزوج". او دویم قیاس دا دی "العدد زوج. و کل زوج فهو زوج الفرد". نو نتیجه دا سوه (۳)"العدد زوج الفرد " لهذا ددغه قیاس نتیجه د ۱ : فرد . ۲ : زوج الزوج. ۳ : او زوج الفرد څخه مرکبه وی.

څه وخت چي مصنف رحمه الله اولا اقسام د هغه قیاس اقتراني بیان کړل کوم چي هغه په جمله حملیه کي راځي. اوس د هغه قیاس اقتراني بیان کوي چي هغه په جمله شرطیه کي راځي او ویویل: قیاس اقتراني په شرطیاتو کي.

سوال: قیاس اقتراني چي په شرطیاتو کي راځي ددغه ځخه څه مراد دی هغه قیاس اقتراني چي محض مرکب د شرطیاتو ځخه وی او که هغه هم مراد دی چي مرکب د شرطیاتو او حملیاتو د دواړو ځخه وی؟

جواب: دلته دغه دوهم مراد دی یعني هغه قیاس اقتراني چي محض د حملیاتو ځخه مرکب نه وی بیا عام تر دي دواړی مقدمې یې د شرطیاتو ځخه وی او که یوه شرطیه او هغه بله حملیه وی.

سوال: هغه قیاس اقتراني چي په شرطیاتو کي راځي هغه څو قسمونه لری؟

جواب: دغه پنځه قسمونه لري، ځکه دغه قیاس به یا مرکب د متصلو ځخه وی، او یا به مرکب د منفصلو ځخه وی، او یا به د حملیه او متصله ځخه مرکب وی، او یا به مرکب د حملیه او منفصله ځخه وی، او یا به مرکب د متصله او منفصله ځخه وی. نو دغه پنځه قسمونه سوه.

سوال: قیاس ولي په اقتراني سره مقید وګرزول سو؟

جواب: دغه قید احترازي دی، په دغه سره احتراز د قیاسي استثنائي ځخه راغلي، ځکه قیاسي استثنائي اقسام ژندې راتلونکي دي.

سوال: مراد د متصلو ځخه څوک دي، لزومیه او که اتفاقیه؟

جواب: دلته مراد متصله لزومیه ده نه اتفاقیه.

## عبارت

وَإمَّا مُرَكَّبٌ مِنَ مُنْفَصِلَتَيْنِ :كَقَوْلِنَا: كُلُّ عَدَدٍ إمَّا زَوْجٌ أَوْ فَرْدٌ وَكُلُّ زَوْجٍ فَهُوَ إمَّا زَوْجِ الزَّوْجِ أَوْ زَوْجُ الْفَرْدِ يُنْتِجَ كُلُّ عَدَدٍ إمَّا فَرْدٌ أَوْ زَوْجُ الزَّوْجُ أَوْ زَوْجُ الْفَرْدِ .وَ إمَّا مِنْ حَمْلِيَّةٍ وَ مُتصِلَةٍ ، كَقَوْلِنَا " كُلَّمَا كَانَ هَذَا الشَيْءُ اِنْسَاناً فَهُوَ حَيْوَانٌ" ، وَ " كُلُّ حَيْوَانٍ فَهُوَ جَسْمٌ " يُنْتِجُ " كُلَّمَا كَانَ هَذَا اِنْسَاناً فَهُوَ جَسْمٌ ". وَ اِمَّا مِنْ حَمْلِيَّةٍ وَ مُنْفَصِلَةٍ كَقَوْلِنَا "كُلُّ عَدَدٍ اِمَّا فَرْدٌ اَوْ زَوْجٌ" . وَ " كُلُّ زَوْجٍ فَهُوَ مُنْقَسِمٌ بِمَتَسَاوِيَتَيْنِ "، يَنْتِجُ " كُلُّ عَدَدٍ فَهُوَ اِمَّا فَرْدٌ وَ اِمَّا مُنْقَسِمٍ بِمُسَاوِيَتَيْنِ". وَ اِمَّا مِنْ مُتَصِلَةٍ وَ مُنْفَصِلَةٍ كَقَوْلِنَا " كُلَّمَا كَانَ هَذَا اِنْسَاناً فَهُوَ حَيْوَانٌ "، و" كُلُّ حَيْوَانٍ فَهُوَ اِمَّا اَبْيَضٌ اَوْ اَسْوَد" . يَنْتِجُ " كُلَّمَا كَانَ هَذَا اِنْسَاناً فَهُوَ اِمَّا اَبْيَضٌ اَوْ اَسْوَد".

## ترجمه

او يا به د منفصلو څخه مرکب وی، لکه زموږ دا قول "هر عدد به يا زوج او يا فرد وی"، "او هر زوج به يا زوج الزوج وی او يا به زوج الفرد وی"، نو نتيجه داسوه " هر عدد به يا فرد وی او يا به زوج الزوج وی او يا به زوج الفرد وی".او يا به مرکب د حمليه او متصله څخه وی لکه زموږ دا قول "څه وخت چي دغه شي انسان وی نو دغه به حيوان وی". " او حيوان جسم دی"، نو نتيجه دا راځي " څه وخت چي دغه انسان وی نو جسم به هم وی". او يا به دغه مرکب د حمليه او منفصله څخه وی ، لکه زموږ دا قول " هر عدد به طاق وی او يا جفت". او "هر جفت و دوو برابرو حصو ته تقسيمږی". نو نتيجه دا راځي "هر عدد به يا طاق وی او يا به دوو برابرو حصو ته تقسيمږی". او يا به مرکب د متصله او منفصله څخه وی ، لکه زموږ دا قول "څه وخت چي دغه انسان وی نو دغه به حيوان وی"، او " هر حيوان به سپين او يا تور وی". نو نتيجه دا راځي " څه وخت چي دغه انسان وی نو دغه به سفيد او يا تور وی".

## تشريح

**هر هغه قياسی اقتراني شرطي چي مرکب ددو منفصلو څخه وی. او دغه دوهم قسم د هغه قياسي اقتراني دی کوم چي په شرطياتو کي واقع سوی وی.**

**مثال:** "هميشه عدد به زوج يا فرد وی.او هر زوج به زوج الزوج يا زوج الفرد وی". نو نتيجه دا سوه "هر عدد به فرد،زوج الزوج يا زوج الفرد وی". ځکه په منفصله کي دا ضروري ده چي يو د جزئينو څخه به واقع وی، ولي چي په منفصله کي د يو شي د جزئينو څخه خالي کېدل منعه

دی عام تر دې جمع کېدل یې هم منعه وی او که منعه نه وی. نو ذکر سوي مثال د دوو منفصلو حقیقیو څخه مرکب دی. او دلته لکه څرنګه چي په یوه عدد کي جمعوالی د فرد او زوج منعه دی دغه ډول د یو عدد ددوی څخه خالي والي هم منعه دی. لهذا په یوه عدد باندي زوج الزوج او زوج الفرد یو ځای کېدای نسي، او دغه ډول یو عدد ځني خالي کېداي هم نسي. نو ددغه نتیجه به منفصله مانعة الخلو وی. ځکه ددغي نتیجې یوه حصه د اولي منفصله هغه جزء دی چي هغه ددویمي مقدمې سره شریک والي " فرد " نه لری.او ددې دویم جزء هغه دی چي هغه زوج او مشترک ددویمي مقدمه سره دی. او دغه زوج بیا دوه قسمه لری. او ددغه قسمو څخه به اول یا دوهم وی. که چیري اول وی نو دغه بیا دوهم جزء د نتیجه " زوج الزوج" وی، او که چیري دوهم قسم وی نو دغه بیا دریېم جزء د نتیجه " زوج الفرد" وی. لهذا نتیجه د درو اجزاؤ څخه مرکبه وی.

( ۱ ): هغه جزء چي د دوارو مقدمو ترمینځ مشترک نه وی، او هغه فرد دی. او دوې نتیجې وي کوم چي د دویمي منفصله د هر جزء په یو ځای والي د اولي منفصله دهغه جزء سره حاصلیږی کوم چي مشترک ددویمي منفصلې سره " زوج " وی. او هغه دوه قیاسه دادي:

۱ ): "العدد زوج. و کل زوج فهو زوج الزوج". نو نتیجه دا سوه (۲) "العدد زوج الزوج". او دویېم قیاس دادی "العدد زوج. و کل زوج فهو زوج الفرد". نو نتیجه دا سوه (۳) "العدد زوج الفرد". لهذا ددغه قیاس نتیجه د ۱ : فرد . ۲ : زوج الزوج. ۳ : او زوج الفرد څخه مرکبه وی.

﴿فائده﴾: دغه لوړه خبره چي نتیجه مرکبه ددرو اجزاؤ څخه وی هغه وخت ده چي اوله مقدمه ددویمي مقدمې سره په هرجزء غیری تام کي شریکه وي . او که چیري دغه ډول نه وه بلکه اوله مقدمه ددویمي مقدمه د اجزاؤ څخه د یوه سره شریکه وی نو په دغه صورت کي نتیجه داسي منفصله مانعة الخلو وي چي مرکبه د درو اجزاؤ څخه وی. ددغي نتیجه دوه داسي اجزاء وي چي د اولي او دویمي مقدمه په ما بین کي شریک نه وی.او دریم هغه جزء وی چي هغه د اولي او ددویمي مقدمې د مشترک اجزاؤ څخه د قیاس جوړیدو ورسته د مقدمې په حیثیت سره حاصله سي. لهذا د اولي مقدمې څخه به هغه جزء واقع وی چي هغه مشترک نه دی نو دغه اول جزء د نتیجه دی.او که چیري د اولي مقدمې څخه هغه جزء واقع وي چي هغه

ددويمي مقدمې سره شريک وی او ددويمي مقدمې څخه هم هغه مشترک جزء واقع وی نو ددغه څخه د قياس د جوړيدو څخه ورسته چي کومه نتيجه حاصله سي هغه به دويم جزء د نتيجه وی.او که چيري ددويمي مقدمې څخه هغه جزء واقع سوی وی چي هغه د اولي مقدمه سره شريک نه وی نو دغه به دريم جزء د نتيجه وی.دمثال په توګه "دائما اما کل انسان ناطق". او "کل فرس حيوان". "دائما اما کل صاهل حيوان او کل حمار ناهق "نو اوس د اولي مقدمې هغه جزء واقع وی چي هغه ددويمي مقدمې سره شريک نه وی نو دغه د نتيجه اول جزء دی." اما کل انسان ناطق "او د اولي مقدمې هغه جزء واقع وی چي هغه ددويم سره شريک وی نو بيا ددغه څخه قياس جوړيږي " کل فرس حيوان. و کل صاهل حيوان " نو نتيجه داسوه " کل فرس صاهل". او دغه د نتيجه دويم جزء دی. او که چيري ددويمي مقدمه څخه هغه جزء واقع سوی وی چي هغه د اولي مقدمې سره شريک نه وی نو دغه بيا د نتيجه دريم جزء وی" کل حمار ناهق "نو مجموع نتيجه داسوه "اما کل انسان ناطق او کل فرس صاهل او کل حمارناهق".

﴿**فائده**﴾:زوج الزوج تعريف: هر هغه عدد چي برابر تقسميږي دغه عدد به زيات تر يوه واري تقسيموالي قبلوي نو دغه عدد بيا ددو حالو څخه خالي نه وی .دغه تقسيم به يوه ته رسيږي او يا به نه رسيږي، که چيري رسيدی نو دغه ته زوج الزوج ويل کيږي. د مثال په توګه څلور اوس دغه څلوريو واري دوو ، دوو ته تقسيمږي، بيا دوه و يوه يوه ته تقسميږي . نو دغه نيموالي يې يوه ته ورسيدي. او که چيري نه رسيدي نو دغه ته زوج الزوج و الفرد ويل کيږي. د مثال په توګه دولس. اوس دولس يو واري شپږ ته تقسميږي . او شپږ بيا درو ، درو ته تقسيمږي .او درې بيا برابر نورنسي تقسميدلای.

زوج الفرد: هر هغه عدد چي برابر تقسميږي، که چيري دغه عدد يو واري تقسيم والي قبلوی دغه ته زوج الفرد ويل کيږي د مثال په توګه لس . اوس دغه يو واري نيموالي قبلوي چي هغه پنځه پنځه کيده دی.او دغه پنځه بيا نور نيموالي ته نه تقسيمږي.

**دريم قسم د قياسي اقتراني په شرطياتو کي**: هر هغه اقتراني چي مرکب د يو حمليه او متصله څخه مرکب وی.

**ځلورم قسم د قياسي اقتراني په شرطياتو کي:** هر هغه اقتراني چي مرکب د يو حمليه او منفصله څخه وي.

**پنځم قسم د قياسي اقتراني په شرطياتو کي:** هر هغه اقتراني چي مرکب د يو متصله او منفصله څخه وي.

يا به دغه قياس اقتراني مرکب د دو منفصلو مقدمو څخه وي.

دلته "کل عدد" دغه اصغر دی، او " اما زوج" دغه حدی اوسط دی، د صغری او کبری تر مينځ مشترک دی. ځکه په دواړو مقدمو کي وجود لری، او مکرر سوی دی. او "او فرد" دغه جزء د صغری او کبری تر مينځ مشترک نه دی.

**سوال:** په دغه قياس کي حدی اوسط کوم يو دی؟

**جواب:** "کل زوج" دغه حدی اوسط دی، او دغه په کبری کي د قياس مکرر راغلي دی، او څه وخت چي دغه حذف کړل سي نو باقي ورسته تر حذفولو دا پاتيږی " کل عدد اما فرد". او دغه جزء د صغری مشترک د کبری سره نه دی، بلکه غير مشترک دی. او "زوج الزوج او زوج الفرد" مرکب د هغه جزء څخه د صغری دی چي هغه مشترک د کبری سره دی چي هغه "زوج" دی، او د دوو اجزاؤ څخه د کبری دی چي هغه " زوج الزوج او زوج الفرد" دی. لهذا د نتيجې اول جزء د صغری هغه جزء دی چي مشترک د کبری سره نه دی، او دوهم جزء يې هغه دادی چي د صغری او د کبری تر مينځ مشترک دی.

**سوال:** نتيجه ولي د درو اجزاؤ څخه مرکبه وی؟

**جواب:** ځکه د اولي منفصلې به يا هغه جزء واقع وی کوم چي د اولي او دوهمي منفصلې تر مينځ مشترک نه وی او هغه جزء " فرد" دی. که چيری دغه غيری مشترک جزء واقع وی نو دغه اول جزء د نتيجې دی. او يا به د اولي منفصله څخه هغه جزء واقع سوی وی چي هغه مشترک ددويمي منفصلې سره وی چي هغه " زوج" دی. اوس به و دوهمي منفصله ته راسو چي د هغې کوم جزء واقع دی، يا خو به هغه جزء واقع وی چي د اولي منفصلې سره مشترک دی "زوج الزوج" نو دغه به د نتيجې دوهم جزء وی، او يا به هغه جزء واقع سوی وی چي هغه د اولي منفصلي

سره مشترک نه وی چي هغه " زوج الفرد" دی (دغه د اولي منفصلې سره شریک نه دی، ځکه په اولي منفصلې کي یو طرف یوازی فرد دی او دوهم طرف يې یوازی زوج دی. او " زوج الفرد" يو هم ددغه څخه نه دی ). نو دغه به د نتیجې دریم جزء وی.

**سوال:** "زوج الزوج" و څه ته ویل کیږی؟

**جواب:** یو تعریف د تشریح تر عنوان لاندی ذکر سو، او دوهم تعریف يې دا هم سوی دی: هر هغه عدد چي د هغه برابر تقسیمول و یوه ته رسیږی، او په دغه عدد کي دغه تقسیم و برابرو ته تر یوه وار زیات سوی وی. د مثال په توګه آته (۸) عدد دی، اولاً و څلورو څلورو ته تقسیمیږی. دغه اول واری تقسیم دی، بیا هر یوه د څلورو څخه برابر، برابر و دو، دو، ته تقسمیږی، دغه دوهم تقسیم دی، بیا هر یو د دو، دو، څخه برابر و یوه ته تقسمیږی. لهذا تقسیم تر یو واری زیات راغلي، او دغه هم و برابرو شیانو ته راغلي، او د تقسیم انتهاء پر یوه وسوه. نو آته ته زوج الزوج عدد ویل کیږی.

**سوال:** " زوج الفرد" و څه ته ویل کیږی؟

**جواب:** هر هغه عدد چي د هغه تقسیم و برابرو ته پر یوه نه ختمیږی. او تر یوه واری زیات تقسیم نه قبلوی.

**مثال:** د شپږو عدد (۶)، اوس ددې تقسیم و برابرو ته کیږی چي هغه درې، درې دی، مګر دغه شپږ نور زیات و برابرو ته نه تقسیمیږی. نو و برابرو ته تقسیم پر درې ختم سو نه پر یوه باندی، او دغه برابرو ته تقسیم یو واری تر سره سو. او دغه ډول دوه (۲) عدد دی، دغه هم "زوج الفرد" دی، ځکه دده تقسیم و برابرو ته یو ځلي سوی دی نه دوه واری.

**سوال:** قیاسِ اقتراني په شرطیاتو کي چي مرکب د حملیه او متصله څخه وی. دغه حملیه صغری او که کبری واقع کیږی؟

**جواب:** صغری حملیه او متصله دواړه کېدای سي، او دغه ډول کبری حملیه او متصله دواړه کېدای سي.

**مثال:** صغری: " کله چي دغه شي انسان وی نو دغه به حیوان وی"، کبری: " او هر حیوان جسم وی"، نو تیجه ددغه قیاس دا راځي " کله چي دغه شي انسان وی نو جسم به وی". اوس دلته

صغری شرطیه متصله واقع سوېده. او کبری حملیه واقع سوېده. او دلته حدی اوسط لفظ د " حیوان" دی. او د نتیجه په صورت کي دغه حدی اوسط ساقطه و گرزی نو نتیجه دا گرزی " څه وخت چي دغه شي انسان وی نو جسم به وی".

**سوال:** هغه قیاسي اقتراني شرطي چي مرکب د حملیه او منفصله څخه وی د هغه مثال څه دی؟

**جواب:** مثال يې دادی، صغری: " هر عدد به فرد او یا زوج وی". کبری: " هر زوج و برابرو ته تقسیمېږی " نو نتیجه دا راوزی " هر عدد به فرد وی او یا به و برابرو ته تقسیمېږی". اوس دلته صغری منفصله او کبری حملیه ده. صغری په دې وجه منفصله ده چي منفصله هغه وی چي د طرفینو د قضیه تر مینځ عناد وی، د زوج او فرد تر مینځ تضاد وی نو دلته د صغری د طرفینو تر مینځ تضاد وجود لری، په دغه وجه صغری منفصله ده.

**سوال:** دغه مثال کوم شکل دی؟

**جواب:** دغه شکلي اول دی.

**سوال:** په شکلِ اول کي حدی اوسط محمول په صغری او موضوع په کبری کي وی، او دلته داسي نه ده ، ځکه دلته په صغری کي محمول "فرد" دی او دغه مکرر د سره نه دی نو بیا به دغه څرنگه حدی اوسط او شکلي اول و گرزی؟

**جواب:** اصل عبارت داډول دی" کل عدد اما فرد او زوج"، و " کل زوج فهو منقسم بمتساويين". اوس دلته حدی اوسط "زوج" دی، او دغه په صغری کي محمول او کبری کي موضوع واقع سوی دی. لهذا موجوده نسخه بناء بر خطائي کتابتي حمل ده.

**سوال:** ددغه قیاس نتیجه حملیه او که منفصله ده؟

**جواب:** دغه نتیجه منفصله ده، ځکه دلته حدی اوسط "زوج" دی، او دده په حذف سره قیاس دا پاتېږی " کل عدد اما فرد او منقسم بمتساويين".

**سوال:** قیاسي اقتراني شرطي چي د متصله او منفصله څخه مرکب وی ددغه قیاس څه صورت وی؟

**جواب:** صورت يې داوی چې صغری متصله راتلای سي او منفصله هم، کبری منفصله او متصله هم کېدای سي.

**سوال:** په دغه صورت کي د قياسِ اقتراني شرطي ددغه قسم کوم صورت و طبعيت ته ژندې وی؟

**جواب:** دا صورت ژندې وی چي صغری شرطيه متصله وی او کبری شرطيه منفصله وی.

**سوال:** ددې صورت مثال کوم ذی؟

**جواب:** مثال دادی "څه وخت چي دغه انسان وی نو دغه به حيوان وی". او "هر حيوان به سپين يا تور وی"، نو تيجه دا سوه "څه وخت چي دغه انسان وی نو دغه به تور يا سپين وی".

**سوال:** په دغه مثال کي حدی اوسط څوک دی؟

**جواب:** حدی اوسط "حيوان" دی، او څه وخت چي حدی اوسط حذف سي نو نتيجه دا پاتيږی "څه وخت چي دغه شي انسان سي نو دغه به تور يا سپين وی"

## عبارت

وَ اَمَّا القِيَاسُ الْإِسْتِثْنَائِي فَالشَرْطِيَّةُ اَلْمَوْضُوْعَةُ فِيْه اِنْ كَانَتْ مُتَصِلَةً فَاِسْتِثْنَاءُ عَيْنِ الْمُقَدمِ يَنْتِجُ عَيْنَ التَالِيْ كَقَوْلِنَا " اِنْ كَانَ هَذَا اِنْسَانًا فَهُوَ حَيْوَانٌ لَكِنَّهُ اِنْسَانٌ فَيَكُوْن حَيْوَانًا". وَ اسْتِثْنَاءُ نَقِيضِ التَّالِي يُنْتِجُ نَقِيضَ المُقَدَّمِ .كَقَوْلِنَا: إِنْ كَانَ هذَا الشَّيْءُ إِنْسَانًا فَهُوَ حَيَوَانٌ لكِنَّهُ لَيْسَ بِحَيَوَانٍ فَلاَ يَكُونُ إِنْسَانًا. وَإِنْ كَانَتْ مُنْفَصِلَةً حَقِيقِيَّةً فَاسْتِثْنَاءُ عَيْنِ أَحَدِ الجُزْءَيْنِ يُنْتِجُ نَقِيضَ الجُزْءِ الثَّانِي .كَقَوْلِنَا: الْعَدَدُ إِمَّا زَوْجٌ أَوْ فَرْدٌ لكِنَّهُ زَوْجٌ يُنْتِجُ أَنَّهُ لَيْسَ بِفَرْدٍ أَوْ لكِنَّهُ فَرْدٌ يُنْتِجُ أَنَّهُ لَيْسَ زَوْجًا. وَاسْتِثْنَاءُ نَقِيضِ أَحَدِهِمَا يُنْتِجُ عَيْنَ الثَّانِي.

## ترجمه

او په قياس استثنائی کي چي کومه شرطيه وضعه سوې وی هغه که چيری متصله وی نو د مقدم په استثناء سره په نتيجه کي تالي راځي. لکه زمونږ دا قول "که چيری دغه انسان وی نو حيوان هم دی". "مګر دغه انسان دی" نو " دغه حيوان دی". او د تالي د نقيض په استثناء کولو سره په نتيجه کي د مقدم نقيض راځي. لکه زمونږ دا قول " که چيری دغه شي انسان وی نو دغه به حيوان وی"، " مګر دغه شي حيوان نه دی نو انسان نه دی". او که چيری منفصله حقيقه وی نو بيا استثناء د يوه د جزئينو نتيجه په صورت کي د نقيض د هغه بل طرف ورکوی. لکه زمونږ دا قول "عدد به زوج او يا فرد وی"، " مګر عدد زوج دی" نو نتيجه داسوه " دغه عدد فرد نه دی ". يا " دغه عدد فرد دیٔ" نو نتيجه داسوه " نو ددغه عدد زوج نه دی". او استثناء د نقيض د يوه د طرفينو نتيجه په صورت کي د هغه بل طرف ورکوی.

## تشريح

دا خبره مخکي تېره سوه چي قياسِ استثنائي هغه دی چي هغه پر نتيجه او يا پر نقيض د نتيجه مشتمله وی، ددغه قياس نتيجه او يا نقيض د نتيجه په خپله د قياس استثنائي د مقدمو څخه يو لاهم نه وی، بلکه د قياسي استثنائي د مقدمه جزء وی، او هغه مقدمه چي نتيجه او يا نقيض د نتيجه ددې جزء وی هغه مقدمه قضيه شرطيه وی، لهذا د قياسي استثنائي يوه مقدمه شرطيه او هغه بله وضعيه وی ( يعني د مقدمه شرطيه د يوه جزء په اثبات سره وضع او ثبوت د هغه بل جزء راځي، او يا په نفي سره د يوه جزء نفي د هغه بل جزء راځي، دغه ته وضعيه

ویل کیږی ). لهذا د قیاسي استثنائی یوه مقدمه شرطیه او بله حملیه وی، مګر ددې حملیه په شروع کي د استثناء ادات ذکر وی لکه "لکن"، او "اما" او پرته ددې.

**سوال:** هغه مقدمه چي د شرطیه په حیث په قیاسي استثنائي کي مقرره سوې وی، هغه متصله وی، او که منفصله ؟

**جواب:** هغه دواړی کېدای سي.

**سوال:** که شرطیه متصله وی نو په دغه صورت کي د استثناء څو صورتونه کېدای سي؟

**جواب:** څلور کېدای سي. ۱: استثناء د مقدم. ۲: استثناء د تالي. ۳: استثناء د نقیض د مقدم. ۴: استثناء د نقیض د تالي. ( او په حقیقت کي ددغه څخه آته صورتونه جوړېدای سي، چي کوم د نقشې په صورت کي لاندی راتلونکي دي).

**سوال:** په دغه څلور صورتونو کي څو صورتونه نتیجه ورکونکي دي؟

**جواب:** دوه . استثناء د مقدم او استثناء د نقیض د تالي. پاته دوه صورتونه نتیجه ورکولای نسي.

**سوال:** استثناء د عینِ تالي نتیجه څه ورکوي؟

**جواب:** استثناء د مقدم نتیجه په صورت کي د استثناء د تالي ورکوی. ځکه مقدم ملزوم او تالي لازم وی، په وجود سره د ملزوم وجود د لازم راځي. که چیری داډول نسي نو بیا به د مقدم او تالي تر مینځ لزوم وجود پیدا نه کړی. او حال دا چي لزوم وجود لری، نو معلومه سوه چي استثناء د مقدم نتیجه په صورت کي د استثناء د تالي ورکوی.

**سوال:** استثناء د نقیض د تالي په کوم صورت کي ورکوی؟

**جواب:** په صورت کي د نقیض د مقدم ورکوی، لهذا استثناء د نقیض د تالي نتیجه په صورت کي د نقیض د مقدم ورکوی. ځکه تالي لازم د مقدمَ سره ده . او د لازم په نفي سره د ملزوم نفي راځي، که چیری دغه ډول نسي نو بیا به د ملزوم وجود بېله لازمه راسي. نو په دغه وجه سره به ددوی تر مینځ لزوم د مینځه لاړ سي، او حال دا چي لزوم ددوی ترمینځ وجود لری.

**سوال:** استثناء د عینِ تالي ولي نتیجه په صورت کي د عینِ مقدم نه ورکوی؟

جواب: ځکه تالي لازمَ د مقدم سره ده، او وجود د لازم مستلزم وجود لره د ملزوم نه دی، ځکه دا کېدای سي چي لازم عام تر ملزوم وی، نو د عاموالي په صورت کي لازم بېله ملزومه وجود پیدا کولای سي. لهذا وجود د عام مستلزم وجود لره د خاص نه وی.

سوال: استثناء د نقیض د مقدم نتیجه په صورت کي د نقیض د تالي ولي نه ورکوی؟

جواب: ځکه نفي والي د ملزوم مستلزم و نفي والي لره د لازم نه دی، ځکه دا کېدای سي چي لازم عام تر ملزوم وی، نو د ملزوم د خاص والي په صورت کي که چیری دده نفي وسي نو دده په نفي والي سره د لازم نفي نه راځي، ځکه په نفي سره د خاص نفي د عام نه راځي، د مثال په توګه د انسان نفي کېدل مستلزم نفي لره د حیوان نه دی.

| | استثناء | نتیجه | مقدمه شرطیه | مقدمه استثنائیه (نتیجه) |
|---|---|---|---|---|
| 1 | عین مقدم | عین تالي | ان کانت الشمس طالعة فالنهار موجود | لکن الشمسَ طالعةٌ، فالنهار موجود |
| 2 | عین مقدم | نقیض تالي | ان کانت الشمس طالعة فالنهار موجود | لکن الشمسَ طالعةٌ، فالنهار لیس بموجود |
| 3 | نقیض مقدم | عینِ تالي | ان کانت الشمس طالعة فالنهار موجود | لکن الشمسَ لیست بطالعة، فالنهار موجود |
| 4 | نقیض مقدم | نقیضِ تالي | ان کانت الشمس طالعة فالنهار موجود | لکن الشمسَ لیست بطالعةٍ، فالنهار موجود |
| 5 | عینِ تالي | عینِ مقدم | ان کانت الشمس طالعة فالنهار موجود | لکن النهار موجود فالشمس طالعةٌ |
| 6 | عینِ تالي | نقیضِ مقدم | ان کانت الشمس طالعة فالنهار موجود | لکن النهار موجود فالشمس لیست بطالعة |
| 7 | نقیضِ تالي | عینِ مقدم | ان کانت الشمس طالعة فالنهار موجود | لکن النهار لیس بموجود فالشمس طالعةٌ |
| 8 | نقیضِ تالي | نقیضِ مقدم | ان کانت الشمس طالعة فالنهار موجود | لکن النهار لیس بموجود فالشمس لیست بطالعةٍ |

سوال: که چیری مقدمه شرطیه په قیاسِ استثنائي کي منفصله وی نو ددې بیا څو صورتونه کېدای سي؟

جواب: ددې درې صورتونه کېدای سي. ۱: منفصله حقیقیه. ۲: مانعة الجمع.۳: مانعة الخلو.

سوال: د منفصله حقیقیه په صورت کي څو صورتونه کېدای سي؟

جواب: په دې کي هم آته احتماله وجود لري. چي تفصیلا لاندی د نقشې په صورت کي وړاندی کیږی.

| | استثناء | نتیجه | |
|---|---|---|---|
| 1 | عین مقدم | عین تالي | العدد اما زوج او فرد ، لكنه زوج فهو فرد. |
| 2 | عین مقدم | نقیض تالي | العدد اما زوج او فرد ، لكنه زوج فليس بفرد. |
| 3 | نقیض مقدم | عینِ تالي | العدد اما زوج او فرد ، لكنه ليس بزوج فهو فرد. |
| 4 | نقیض مقدم | نقیضِ تالي | العدد اما زوج او فرد ، لكنه ليس بزوج فهو ليس بفرد. |
| 5 | عینِ تالي | عینِ مقدم | العدد اما زوج او فرد ، لكنه فرد فهو زوج. |
| 6 | عینِ تالي | نقیضِ مقدم | العدد اما زوج او فرد ، لكنه فرد فليس بزوج. |
| 7 | نقیضِ تالي | عینِ مقدم | العدد اما زوج او فرد ، لكنه ليس بفرد فهو زوج. |
| 8 | نقیضِ تالي | نقیضِ مقدم | العدد اما زوج او فرد ، لكنه ليس بفرد فهو ليس بزوج . |

مګر په دغه آتو احتمالاتو کي نتیجه ورکونکي هغه دوه دي.

۱: د منفصله د اجزاؤ څخه چي د کوم استثناء وسي نو نتیجه د هغه بل جزء د نقیض په صورت کي راځي ، ځکه دغه منفصله حقیقیه ده، او په حقیقیه کي طرفین سره یو ځای کېدای نسي، اوس که چیری د یوه طرف د استثناء په صورت کي نتیجه په صورت کي د عینِ هغه بل جزء راسي نو یوځای والي به ددغه داوړو طرفینو راسي. ځکه د حرفِ استثناء ورسته چي کوم طرف راسي نو هغه موجود وی، اوس که نتیجه بعینه هغه بل طرف سي نو هغه به هم موجود سي نو بیا موجود والي او یو ځای والي د طرفینو راغلي کوم چي صحت نه لری.

**مثال:** "اما ان يكون هذا العدد زوجا او فرداً"، " لكنه زوج" نو نتيجه يې دا رځي " انه ليس بفرد". اوس دلته استثناء د "زوج" نتيجه په صورت کي د نقيض د هغه بل جزء "فرد" ورکړېده، او هغه دلته داده " انه ليس بفرد".

۲: استثناء د نقيض د کوم طرف وسي نو بعينه د هغه بل طرف په صورت کي به نتيجه راځي، اوس که چيرى عينِ هغه بل طرف نتيجه نسي، بلکه د هغه د نقيض په صورت کي نتيجه راسي نو خالي به د يو شي د طرفينو څخه راسي کوم چي روا نه دى.

**مثال:** "اما ان يكون هذا العدد زوجا او فرداً "، " لكنه ليس زوج "نو نتيجه يې دا رځي " انه فرد". اوس دلته استثناء د نقيض د "زوج" نتيجه په صورت کي د هغه بل طرف" فرد" ورکوى. چي هغه داده " انه فردٌ".

که منفصله چيرى مانعة الجمع وى نو په دغه صورت کي نتيجه ورکونکي صورتونه دوه دي.

۱: استثناء د جزء اول نتيجه په صورت کي د نقيض د هغه بل راځي.

**مثال:** " هذا الشيء اما شجر او حجر"، " لكنه شجر فليس بحجر". دلته "شجر" چي طرفِ اول دى، دده په استثناء سره نتيجه د نقيض د هغه بل طرف راغليده چي هغه " ليس بحجر" دى.

۲: استثناء د دوهم جزء نتيجه په صورت کي د طرفِ آخر ورکوى.

**مثال:** "هذا الشيء اما شجر او حجر". " لكنه حجر فليس بشجر" اوس دلته استثناء د دوهم جزء" حجر" نتيجه په صورت کي د نقيض د هغه بل طرف ورکړل چي هغه " ليس بشجر " دى.

او که منفصله مانعة الخلو وه نو په دغه کي هم دوه صورتونه نتيجه ورکونکي دي.

۱: استثناء د نقيض د طرفِ اول نتيجه په صورت کي د عينِ طرفِ ثاني ورکوي.

**مثال:** "زيد اما في البحر و اما ان لايغرق، لكنه ليس في البحر فلا يغرق" . اوس دلته استثناء د اول طرف د نقيض " ليس في البحر" نتيجه په صورت کي د طرفِ آخر" فلايغرق" ورکړل.

۲: استثناء د نقيض د ثاني نتيجه په صورت کي د طرفِ اول ورکوى.

**مثال:** " زيد اما في البحر و اما ان لايغرق"، " لكنه يغرق فهو في البحر". اوس دلته استثناء د نقيض د ثاني " يغرق" نتيجه په صورت کي د عينِ طرفِ اول" هو في البحر" ورکړېده.

څه وخت چي مصنف رحمه الله د بيان څخه د قياسِ اقتراني فارغه سو نو اوس ده شروع په بحث کي د قياسِ استثنائي وکړل، او وې فرمايل: قياس استثنائي د دوو مقدمو څخه مرکب راځي، يوه د هغو څخه شرطيه او هغه بله حمليه وي چي هغې ته وضعيه ويل کيږي. وضعيه مطلب دادی چي د شرطيه د يو جزء په اثبات سره د هغه بل جزء اثبات راځي، او په نفي سره د يوه جزء يې نفي د هغه جزء راځي.

**سوال:** وضعيه ته وضعيه ولي ويل کيږي؟

**جواب:** ځکه دغه قضيه د شرطيه د يو جزء د اثبات دپاره وضعه سوېده. مثلا ته ووايې: "که چيری لمر راختلي وی نو ورځ به موجوده وی"، "مګر لمر راختلي دی" نو ورځ موجوده ده. اوس دغه قياس د دوو مقدمو څخه جوړه سوی دی. يوه د هغوی څخه شرطيه ده، او هغه داده "که چيری لمر راختلي وی نو ورځ به موجوده وی"، او هغه بله وضعيه ده " مګر لمر راختلي دی" اوس دغه قضيه د شرطيه د يو جزء د اثبات دپاره وضعه سوېده، او دغه د هغه بل جزء د اثبات په صورت کي نتيجه ورکوی چي هغه دلته داده " نو ورځ موجوده ده". او يا به دغه قضيه رفعيه وی، يعني رفعه او نفي د يو جزء د شرطيه نتيجه په صورت کي د نفي د هغه بل جزء ورکوی چي هغه دلته دادی "لمر راختلي نه دی".

**سوال:** په متصله کي څو احتمالات وجود لری؟

**جواب:** څلور احتمالات وجود لری.۱: وضع المقدم. ۲: وضع التالي.۳: رفع المقدم.۴: رفع التالي.

**سوال:** وضع التالي نتيجه ورکوی او که نه؟

**جواب:** نتيجه نه ورکوي، ځکه کېدای سي چي تالي عام تر مقدم وی، او ثبوت د عام مستلزم ثبوت لره د خاص لازم نه دی.

**مثال:** " ان كان هذا انسانا فهو حيوان". که چيری دغه انسان وی نو دغه به حيوان وی. مګر حيوان دی. نو اوس دغه نتيجه دا نه ورکوی چي دغه به انسان وی. ځکه د انسان څخه سېوا يو بل حيوان کېدای سي لکه خر او دغه ډول نور.

سوال: په رفع التالي سره نتيجه په کوم صورت کي راځي؟

جواب: په صورت کي د رفع المقدم نتيجه ورکوي، ځکه انتفاء د لازم مستلزم و انتفاء ته د ملزوم وي.

سوال: رفع المقدم نتيجه په يو صورت کي ورکوي او که يې نه ورکوي؟

جواب: نه، لکه په پاسني ذکر سوی صورت کي، که چيرې دغه انسان وي نو دغه به حيوان وي، مګر انسان نه دی، اوس دغه مستلزم و دې ته نه دی چي دغه به حيوان نه وي، ځکه په نفي سره د خاص نفي د عام نه راځي.

سوال: په مانعة الجمع کي څو مره صورتونه وي؟

جواب: څلور.

سوال: هغه کوم دي؟

جواب: دادي. ١: رفع د مقدم .٢: رفع د تالي.٣: وضع د مقدم.٤: وضع د تالي. مګر په دغه کي دوه صورتونه نتيجه ورکونکي دي.

١: وضع عين المقدم نتيجه په صورت کي د رفع التالي ورکوی.

مثال: "هذه الكلمة اما اسم او فعل" لكنه اسم فهو ليس بفعل" يعني دغه کلمه به اسم او يا فعل وی، مګر اسم دی نو فعل نه دی.

٢: وضع د عين التالي نتيجه په صورت کي د رفع المقدم ورکوی. مګر رفع المقدم نتيجه په صورت کي د عينِ تالي نه ورکوی. او رفع د تالي نتيجه په صورت کي د عينِ مقدم نه ورکوی.

مثال: "هذه الكلمة اما اسم او فعل" لكنه فعل فهو ليس باسم" دغه کلمه به اسم او يا فعل وی، مګر فعل ده نو اسم نه ده.

سوال: په مانعة الخلو کي څو مره احتماله وي؟

جواب: څلور.

سوال: هغه کوم دي؟

**جواب:** هغه دادي.۱: رفع المقدم .۲: رفع التالي.۳: وضع المقدم. ۴: وضع التالي.
اوس په دغه کي دوه صورتونه نتيجه ورکوي هغه دادی.
۱: رفع المقدم په صورت کي د وضع التالي نتيجه ورکوی.
**مثال:** "هذا الشيء اما لاشجر او لاحجر" "لكنه شجر فهو لاحجر. يعني دغه شي به لاشجر او يا لاحجر وی، مګر شجر دی نو لاحجر نه دی.
۲: رفع د تالي نتيجه په صورت کي د وضعِ د مقدم ورکوی. مګر وضع د مقدم نتيجه په صورت کي د رفع د تالي نه ورکوی، او وضع د تالي په صورت کي د رفعِ د مقدم نتيجه نه ورکوی.
**مثال:** "هذا الشيء اما لاشجر او لاحجر" "لكنه حجر فهو لا شجر". يعني دغه شي به لاشجر او يا لاحجر وی، مګر حجر دی نو لاشجر نه دی.
**سوال:** په منفصله حقيقة کي څو احتماله وجود لري؟
**جواب:** څلور.
**سوال:** هغه کوم دي؟
**جواب:** دادی. ۱: رفع د مقدم.۲: رفع د تالي.۳: وضع د مقدم. ۴: وضع د تالي. او څلور صورتونه نتيجه ورکونکي دي.
۱: رفع د مقدم نتيجه په صورت کي د وضع د تالي.
**مثال:** العدد اما زوج او فرد ، لكنه ليس بزوج فهو فرد. يعني دغه عدد به جفت او يا طاق وی، مګر جفت نه دی نو طاق دی.
۲: وضع د مقدم په صورت کي د رفعِ د تالي نتيجه ورکوی.
**مثال:** العدد اما زوج او فرد ، لكنه زوج فهو ليس بفرد. يعني دغه عدد به زوج او يا فرد وی، مګر زوج دی نو فرد نه دی.
۳: وضع د تالي نتيجه په صورت کي د رفعِ د مقدم ورکوی.
**مثال:** العدد اما زوج او فرد ، لكنه فرد فهو ليس بزوج. يعني دغه عدد به زوج او يا فرد وی، مګر فرد دی نو زوج نه دی.

۴: رفع د تالي په صورت کي د وضع د مقدم نتیجه ورکوی.

**مثال:** العدد اما زوج او فرد ، لكنه ليس بفرد فهو زوج. یعني دغه عدد به زوج او یا فرد وی، مګر فرد نه دی نو زوج دی.

## عبارت

اَلْبُرْهَانُ :هُوَ قِيَاسٌ مُؤَلَّفٌ مِنْ مُقَدِّمَاتٍ يَقِينِيَةٍ لِإِنْتَاجِ الْيَقِينِيَّاتِ وَالْيَقِينِيَّاتُ أَقْسَامٌ : أَحَدُهَا أَوَّلِيَّاتٌ . كَقَوْلِنَا: اَلْوَاحِدُ نِصْفُ الِاثْنَيْنِ وَالْكُلُّ أَعْظَمُ مِنَ الْجُزْءِ .وَمُشَاهَدَاتٌ.كَقَوْلِنَا: اَلشَّمْسُ مُشْرِقَةٌ وَالنَّارُ مُحْرِقَةٌ .وَمُجَرَّبَاتٌ. كَقَوْلِنَا: اَلسَّقْمُونِيَا مُسَهِّلَةٌ لِلصَّفْرَاءِ .وَحَدْسِيَّاتٌ كَقَوْلِنَا: نُورُ الْقَمَرِ مُسْتَفَادٌ مِنْ نُورِ الشَّمْسِ .وَمُتَوَاتِرَاتٌ كَقَوْلِنَا: مُحَمَّدٌ صلى الله عليه وسلم ادَّعَى النُّبُوَّةَ، وَظَهَرَتِ الْمُعْجِزَةُ عَلَى يَدِهِ. وَقَضَايَا قِيَاسَاتُهَا مَعَهَا .كَقَوْلِنَا: اَلْأَرْبَعَةُ زَوْجٌ بِسَبَبِ وَسَطٍ حَاضِرٍ فِي الذِّهْنِ وَهُوَ الِانْقِسَامُ بِمُتَسَاوِيَيْنِ.

## ترجمه

برهان هغه قیاس دی کوم چي د داسي مقدماتو څخه مرکب سوی وی چي هغه یقیني وي ددې دپاره چي حاصل سوې نتیجه یقیني وی. د یقینیاتو شپږ قسمونه دي. د هغوی څخه اولني قسم اولیات دي، لکه زموږ دا قول "یو د دوو نیمی دی". او " کل تر خپل جزء غټ وی". او دوهم قسم مشاهده ده لکه زموږ دا قول "لمر روښانه دی"، " اور سوزېدونکی دی". او دریېم قسم تجربه ده ، لکه زموږ دا قول " د سقمونیا چینښل ژړ لری کوی". او څلورم قسم حدس دی. لکه زموږ دا قول " د سپوږمي رڼا د لمر د رڼا څخه حاصله سوېده". او پنځم قسم متواتر دی لکه زموږ دا قول " محمد رسول الله ﷺ د نبوت دعوی کړېده". او " محمد رسول الله ﷺ په خپل لاس معجزې ښکاره کړي وې". شپږمي هغه قضیې دي د کومو سره قیاس ملګری وي. لکه زموږ دا قول " څلور جفت دي". د هغه دلیل د وجې څخه چي هغه په ذهن کي حاضر دی یعني و دوو برابرو ته تقسمېدل.

## تشریح

برهان په لغت و دلیل ته ویل کیږی، او په اصطلاح کي هر هغه قیاس ته ویل کیږی کوم چي مرکب د یقیني مقدماتو څخه دپاره د یقین فائده کولو وی .

**سوال:** مقدمه یقینیه و څه ته ویل کیږي؟

**جواب:** یقینیه کي یاء دپاره د نسبت ده، یعني مقدمه منسوب بسوی یقین، لهذا یقینیه هر هغه مقدمه ده چي د هغه سره متعلق کوم تصدیق وی هغه یقین وی. لهذا علم او تصدق پر دغه قضیه باندی یقین وی.

خلاصه دا سوه چي مقدمه معلوم وی. او پر هر معلوم باندی علم وی، که چیری دغه علم یقین وی نو دغه مقدمه ته یقینیه ویل کیږي.

**سوال:** یقین و څه ته ویل کیږي؟

**جواب:** هغه اعتقاد چي جازم وی، او ددغه اعتقاد د مقابل او مخالف د واقع کېدلو هیڅ یو احتمال نه وی. او دغه اعتقاد مطابق د واقع او نفس الامر سره وی.

**سوال:** یقینیات څو قسمونه لري؟

**جواب:** هغه څو قسمونه لري، د هغه تفصیل لاندی راتلونکي دي.

د کوم کلام تر اورېدلو ورسته یقین پېدا سي ، او په هغه کي کوم شک پاته نه وی نو داسي کلام ته کلامِ یقیني ویل کیږي. او د کوم کلام تر اورېدو ورسته شک پاته سي نو هغه کلام ته کلامِ ظني ویل کیږي. څرنګه قیاس جوړ د مقدماتو څخه وی، په دغه وجه د کوم قیاس چي دواړی مقدمې صغری او کبری یقیني وي نو ددغه نتیجه به هم یقیني وی. او دغه قیاس ته قیاسِ یقیني ویل کیږي. او د کوم قیاس چي صغری او کبری ظني وی نو د هغه نتیجه هم ظني وی. یقیني قیاس ته برهان ویل کیږي. یقین دوه ډوله پیدا کیږي.

۱: بېله کومه دلیلَ کلام صحی و منل سي، او په هغه کي کوم شک پاته نسي دغه یقین ته بدیهي ویل کیږي.

۲: د یو کلام یقیني معلومېدل د دلائلو په توسط سره وی د مثال په توګه د قرآن پاک څخه، احادیثو متواترو څخه دغه یقین ته نظری ویل کیږي.

د بدیهي یقین شپږ قسمه لري.

۱: **اولیات:** هر هغه قیاس چي عقل دده د طرفینو په تصور کولو سره حکم و کړی. او په حکم کولو کي سېوا د طرفینو د تصور څخه و کوم بل شي ته احتیاج نه وی.

**مثال:** کل غټ تر جزء دی. اوس دلته یو طرف کل او بل طرف جزء دی، د کل او جزء په تصور سره عقل حکم د غټوالي کوی.

۲: **مشاهدات:** هر هغه قیاس چي محض تصور د طرفینو د حکم دپاره کفایت نه کوی بلکه عقل په حس سره و مشاهده کولو ته محتاجَ وی.

**مثال:** لمر زلانده دی، یو طرف لمر او دوهم طرف زلېدل دی. او د لمر او زلانده د تصور ورسته عقل حکم په زلاندوالي سره د لمر نه کوی بلکه دی په حس سره و مشاهدې ته محتاجَ دی، لهذا د مشاهده کولو ورسته بیا عقل حکم کوی.

او اور سوځېدونکي وی. اور یو طرف او سوځېدل بل طرف دی، او عقل ددوی د تصور کولو ورسته حکم نه کوی، بلکه تر مشاهده ورسته عقل حکم کوی.

۳: **مجربات:** هر هغه قیاس چي عقل ورسته د تکرار د مشاهده و جزم ته رسي.

**مثال:** د سقمونیا چیښل ژړ صفا کوی. اوس یو ځلي د طرفینو په مشاهده کولو سره عقل و جزم ته نه رسي. بلکه په بار بار مشاهده کولو سره ورسته عقل حکم کوی چي د سقمونیا چیښل ژړ صفا کوی.

۴: **حدسیات:** هغه قیاس چي عقل حکم د حدس (کوم چي علم فائده کوی) په توسط سره کوی.

**مثال:** د سپوږمي رڼا د لمر رڼا څخه ده.

**سوال:** حدس و څه ته ویل کیږی؟

**جواب:** دلته یو مبادی او یو مطلوب وی، د مثال په توګه یو معلومي تصوری او یو معلومي تصدیقي وی. او د معلومي تصوری په توسط مجهول تصوری حاصلیږی، او په معلومِ تصدیقي په توسط سره مجهولِ تصدیقي حاصلیږی. لهذا دغه معلوم مبادی او مجهول یې مطلوب دی، نو ذهن د مبادیو څخه و مطلوب ته انتقال په ډېر تېزی سره داډول وی چي مبادی او مطلوب په یوه ځل حاصله سي.

۵: **متواترات:** هغه قضایاوی چي عقل ددوی په هکله جزم کول په واسطه سره د اورېدلو د ډېره کسانو څخه کوی چي د هغوی یو ځای والي پر دروا غو باندی عقلاً محاله وی.

**مثال:** د الله رسول صلي الله عليه و سلم دعوی د نبوت و کړه. دلته یو طرف د الله رسول او بل طرف د نبوت دعوی کول بل طرف دی. لهذا دغه خبره د دومره کسانو څخه اورېدل سوې ده چې د هغوی یو ځای والي پر دروا غو باندی محاله دی.

۶: هغه قضایاوی چې ددوی سره حدی اوسط په ذهن کي وجود لری.

**مثال:** څلور یو جفت عدد دی. اوس ددې دلیل دادی چې "څلور و برابرو ته تقسیمېږی". او هر عدد چې برابرو ته قسمیږی هغه جفت عدد وی". اوس دغه دلیل په ذهن کي هغه مهال متصور وی چې موږ د څلورو د جفتوالي کوو.

خلاصه حواشي ایوبي

قیاس پر دوه شیانو باندی مشتمله وی. ۱: صورت د قیاس. ۲: ماده د قیاس. صورت د قیاس بیان سو، اوس دلته مصنف رحمه الله ماده د قیاس بنئي. لهذا قیاس یا د قضیه یقینیه او یا د قضیه ظنیه څخه جوړ سوی وی.

**سوال:** یقین و څه ته ویل کیږی؟

**جواب:** یقین هغه اعتقاد دی چې کلک وی (په دغه سره گمان ووتي ځکه هغه کلک نه وی)، د واقع سره مطابق وی (جهلي مرکب ووتي، دا هغه دی چې یو ناپوه کس پر یوه شي باندی کلک اعتقاد لری، مگر دغه کس غلط وی، او دی په خپله دغه غلطیا خبر نه وی، نو بیا دی پر دغه خپله غلطیا باندی کلک ولاړ وی) او ثابت وی (هغه اعتقاد ووتي چې سړی یې د خپل پیر په هکله لری، لهذا دغه هم اعتقاد وی مگر د شک اچونکي په وجه دغه اعتقاد د مینځه ځي، ثابته پاته نسي)

**سوال:** دغه پنځو قسمونو ته په منطق کي کوم نوم ورکول کیږی؟

**جواب:** دغه ته صناعاتي خمسه ویل کیږی. څرنگه په منطق کي بحث د صورت څخه د قیاس کړل کیږی دغه ډول د ماده څخه هم بحث کړل کیږی. د اول په هکله بحث و انتهاء ته و رسېدی نو په دغه وجه مصنف رحمه الله و دوهم بحث ته اشاره وکړه چې هغه بحث د ماده څخه د قیاس دی.

**سوال:** حدسیات و څه ته ویل کیږی؟

**جواب:** قطب الدین رازی رحمه الله: ده فرمایلي دي چي حدسیات هغه دی کوم چي و تکرار ته د مشاهدې احتیاج نه لری.

**سید سند رحمه الله:** دی په شرح کي د مواقف فرمایي: په حدسیاتو کي د مشاهدې ترسره کول ضروری نه دی، نو یو شي چي ضروری نه وی نو بیا د هغه تکرار نفي کول هیڅ معني نه لری، د مثال په توګه زید و یو مجلس ته نه راځي نو اوس ته وایې چي زید دلته بار بار په تکرار سره راتلای نسي، نو دا هیڅ معني نه لری. لهذا په حدسیاتو کي مطلوب او مبادی په یوه پلا حاصل سي.

**سوال:** د تواتر حد معلوم دی چي د څومرو خلکو څخه په رانقل کېدو سره یوه خبره متواتره ګرزی؟

**جواب:** نه دده دپاره کوم حد مقرر دی، بلکه دومره خلک یې بیان کړی چي عقل دا ووایي چي د دومرو خلکو پر درواغ ویولو باندی اتفاق راتلای نسي.

**سوال:** حدسیات، مجربات پر بل کس باندی دلیل ګرزېدلای سي؟

**جواب:** نه، ځکه دا کېدای سي چي یو قیاس دی، د یو کس په وړاندی حدسي وی او د بل په وړاندی بیا نه وی، او دا هم کېدای سي چي یوه دي تجربه کړې وی او بل دي بیا نه وی کړې. څه وخت چي دغه ډول کېدل ممکن وه په دې وجه دا پر بل باندی دلیل جوړېدای نسي.

## عبارت

وَالجَدَلُ :وَهُوَ قِيَاسٌ مُؤَلَّفٌ مِنْ مُقَدِّمَاتٍ مَشْهُورَةٍ . وَالخَطَابَةُ :وَهِيَ قِيَاسٌ مُؤَلَّفٌ مِنْ مُقَدِّمَاتٍ مَقْبُولَةٍ مِنْ شَخْصٍ مُعْتَقَدٍ فِيهِ أَوْ مَظْنُونَةٍ. وَالشِّعْرُ :وَهُوَ قِيَاسٌ مُؤَلَّفٌ مِنْ مُقَدِّمَاتٍ مَقْبُولَة مُتَخَيَّلَةٍ تَنْبَسِطُ مِنْهَا النَّفْسُ أَوْ تَنْقَبِضُ .وَالمُغَالَطَةُ :وَهِيَ قِيَاسٌ مُؤَلَّفٌ مِنْ مَقَدِّمَاتٍ كَاذِبَةٍ شَبِيهَةٍ بِالْحَقِّ أَوْ بِالْمَشْهُورِ أَوْ مِنْ مُقَدِّمَاتٍ وَهْمِيَّةٍ كَاذِبَةٍ وَالْعُمْدَةُ هُوَ الْبُرْهَانُ لاَ غَيْرُ. انْتَهى.

## ترجمه

او جدل يو داسي قياس دی کوم چي مرکب و شهرت ته رسيدلو مقدماتو څخه وی، او خطابت هغه قياس دی چي مرکب د داسي مقدماتو څخه وی چي هغوی د يو داسي کس څخه اخيستل سوی وی چي د هغه په هکله د ښه اعتقاد او يا ګمان وی. او شعر هغه قياس دی چي هغه د داسي مقدماتو څخه مرکب وی چي په هغه سره نفس غوړيږی او يا خوابدی کيږی. او مغالطه هغه قياس دی چي هغه مرکب د هغه مقدماتو څخه وی چي هغوی مشابه د حق يا و شهرت ته رسيدلي مقدمو سره او يا د وهمي دروغجنو مقدماتو سره وی. او عمده تر ټولو برهان دی، نه بل يو. مګر دغه آخر د رسالې دی. هم پر دغه رساله و پای ته و رسيدله.

## تشريح

مصنف رحمه الله د نظری قسمونه بيانوی.

### اول : جدل:

**سوال: جدل و څه ته ويل کيږی؟**

**جواب:** جدل په لغت کي و قوت ته ويل کيږی ، او په اصطلاح کي هغه قياس دی کوم چي د مشهورو مقدماتو څخه مرکب سوی وی، او يا د منل سوو مقدماتو څخه مرکب سوی وی.

**سوال: مشهوری مقدماتي او قضاياوی و څه ته ويل کيږی؟**

**جواب:** هغه قضاياوی چي د خلکو د اعتراف په وجه په هغوی کي ( د عقل د طرف) حکم سوی وی، او د دغه حکم کيدلو څو وجي کيدای سي.

[۱] : د عامو خلکو د ګټې په وجه تر سره سوی وی لکه "اَلْعَدْلُ حَسَنٌ" عدل او انصاف نېک کار دی. او س عدل ته نیک کار ویل د عامو خلکو د ګټې دپاره ورته ویل سوی دی.

[۲] : یا د زړه د نرم والي د وجې وی لکه " مواساة الفقراء محمودة" یعني د فقیرانو سره کومک کول د ستاینې کار دی.

[۳] : یا د غیرت د وجې حکم سوی وی لکه "کشف العورة مذموم في المحافل". یعني په محفلونو کې عورت لڅوول او ښکاره کول بد کار دی.

[۴] : یا د عادت د وجې څخه سوی وی. لکه " ذبح الحیوان قبیح عند اهل الهند" یعني د هند د خلکو یعني د هندوانو په وړاندی د حیوان حلال یو بد کار دی. او دغه ددوی یو عادت دی.

**سوال:** مشهوری مقدمې کله کله چې په شهرت کې د اولیاتو غوندی وګرزی نو په دغه وخت کې د مشهورو مقدمو او د اولیاتُ تر مینځ څه فرق وی؟

**جواب:** فرق داوی چې په اولیاتو کې محض تصور د طرفینو دپاره د حکم کفایت کوی، او په مشهورو مقدمو کې تصور د طرفینو کافي نه وی بلکه دغه پاسنې ذکر سوی شیانو څخه و یوه ته ضرورت وی. دغه ډول اولیاتِ محض صادقې وي او مشهوری مقدماتې صادقې او کاذبې دواړه ډول راځي.

**سوال:** غرض د جدل څخه څه وی؟

**جواب:** غرض داوی چې الزام د خصم او د مقابل راسي او هغه کس قانع سي کوم چې د اولیا تو د ادراک څخه عاجزه وی.

**سوال:** مقدماتې مسلمه و څه ته ویل کیږی؟

**جواب:** هغه مقدماتې کوم چې د خصم او مقابل سره و منل سي . او هر یو د خصم څخه د خپلې خبری د اثبات او د مقابل د تردید دپاره دغه منل سوي مقدماتې وړاندی کوی. د مثال په توګه د فقهاؤ رحمهم الله تر مینځ چې کومې اختلافي مسائلې دي.

**دوهم : قیاسِ خطابي:** هغه قیاس کوم چې مرکب د داسې مقدماتو څخه وی چې هغوی د یو معتبر کس په وړاندی مقبولې وي. او یا هغه مقدماتې پر اټکل بنا وي.

**سوال:** مقبولې مقدماتې کومې دي؟

**جواب:** هغه قضاياوي كومي چي د داسي كسانو څخه اخيستل سوي وي چي د هغوی د حقيت عقيده د آسماني حكم په وجه لرل كيږي. لكه د الله د رسولانو معجزې، د اولياؤ كرامات. او يا ددوی عقل او پوه تر نورو زياته وي ، لكه علماء ، او يا ديني خصوصيت لری لكه نېک خلک.

**سوال:** مظنونه كومي قضاياوی دي؟

**جواب:** هغه قضاياوی چي په هغوی كي حكم پر راجح طرف سره سوی وی، او په دغه كي د راجح طرف د نقيض احتمال وجود لری. او دغه احتمال هم مرجوح وی. لكه ويل كيږی " فلانكي كس د شپې د ګرزلاو په وجه غل دی".

**سوال:** غرض د خطابة څخه څه وی؟

**جواب:** په دغه كي مقصد و خلكو ته د نيكو او د خير د كارونو ترغيب وركول وی. او د شر د كار څخه راګرزول وی. دغه لكه خطيبان او تقرير كونكي واعظان يې كوي.

**دريیم** : **قياسِ شعری**: دغه قياس مركب د داسي قضاياؤ څخه وی چي په هغه سره نفس خوشحاله كيږی او يا نفس په خوابدی كيږی.

**سوال:** ددغه شعری څخه مقصد څه وی؟

**جواب:** مقصد داوی چي نفس متاثره سي، او د هغه په وجه دی د ښه كار كولو او د بد كار څخه د راګرزېدلو دپاره تيار وګرزي.

**څلورم** : **مغالطه**: دا هغه قياس دی چي مركب د داسي قضاياؤ څخه وی چي هغه د حقيقي او مشهورو مقدمو سره مشابه وی. (دغه ته سفسطه ويل كيږی )، او يا وهمي او دروغجني مقدماتو سره مشابه وي. ( دغه ته مشاغبه ويل كيږی)

او ددغه قسمونو څخه اصل قياسِ برهان دی نه كوم بل يو . او ددغه رساله په آخر كي تعريف د هغه ذات سي چي د هغه لپاره ابتداء ده او وه ده ته د هر شي د انتهاء رجوع كيږی.

خلاصه حواشي ايوبي

جدل يو نتيجه وركونكي حجت دی، او په دغه كي شرط دادی چي چي دغه حجت به شهرت ته رسېدلي وی او يا به خصم او مقابل چي د هغه په خلاف دغه حجت وړاندی كيږی هغه يې

مني، لهذا په حجت کي شهرت ته رسېدنه او یا د خصم په وړاندی منل شرط دی. بیا عام تر دې دغه حجت په حقیقت کي رښتیا او که دروا غ وی.

**سوال:** جدل مرکب د مشهورو مقدماتو څخه وی، لهذا د شهرت څخه څه مراد دی؟

**جواب:** ددې څخه مراد دادی چي د هر قوم خپله اصطلاح وی، او د هغو په وړاندی د یو شي مشهورتیا داډول وی چي د اولیاتُ مشابه وګرزی، لهذا هغه قضایاوی چي دومره میشهوره سي چي مشابه د اولیاتو وګرزی.

**سوال:** یقینیات څو قسمونه لري؟

**جواب:** شپږ، او کوم قیاس چي هم ددغه شپږو قسمونه څخه چي د کوم یوه څخه هم مرکب وګرزی هغه ته برهان ویل کیږی:

**سوال:** هغه مقدمې چي یقیني نه وی هغه څو قسمونه لري؟

**جواب:** هغه هم شپږ قسمونه لري. د هغو څخه یو مشهوری مقدمې دي چي د هغه ذکر تېر سو، او بل قسم یې مسلمات دي. مسلمات هغه مقدمې دي چي هغوی متخاصمي او مقابلي دواړی ډلې یې ثابت والي مني.

**مثال:** امر دپاره د وجوب دی. اوس درود واجب دی دلیل دا الهي قول دی " صلوا علیه". اوس دلته "صلوا" صیغه د امر ده، او امر دپاره د وجوب دی، نو درود ویل واجب سو. او په دغه سره رد پر هغه چا راغلي چي هغه درود واجب نه بولي. لهذا یو خصم د عدمي وجوب قائله دی. او مقابل یې د وجوب قائله دی. او ددوی دواړو په وړاندی دا خبره مسلمه او منل سوېده چي امر دپاره د وجوب دی.

۳: مقبولي مقدمې. هغه مقدمې دي چي هغه په خلکو کي قبولیت ته رسېدلي وی لکه ویل کیږی " کرامة الاولیاء حق". د اولیاء الله کرامت حق دي.

**سوال:** دا خبره چي د نبیانو علیهم السلام معجزې ثابتي دي. دغه په یقیني او که په غیر یقیني کي داخلي دی؟

**جواب:** دغه په متواتر کي داخلي دي. البته په شرحَ کي د مطالع دا خبره ذکر سوېده چي دغه د رسولانو د معجزې خبره دغه په مقبول کي داخله ده. او دغه په مقبول کي کوم چي د غیر

يقيني يو قسم دی په کي داخل گرزول هر کس په تعجب کي اچوی، چي دغه نو په مقبول غير يقيني کي ځرنګه داخلي دی.

**سوال:** شعر و څه ته ويل کيږی؟

**جواب:** دغه هغه قياس دی کوم چي د داسي مقدماتو څخه مرکب وی چي د هغه په اورېدلو سره نفس خوشحاله کيږی او يا غمجن کيږی. او دغه مقدماتو ته مخيلات ويل کيږی. او ددغه په هکله نفس کوم يقين ته نه رسي، البته ددوی په اورېدلو سره نفس متاثره ګرزی. مقررين او خطيبان حضرات چي کوم کلام استعالموی هغه هم ددغه قبيلې څخه دی چي ددوی په اورېدلو سره د اورېدونکي نفسونه متأثره و ګرزی.

**سوال:** مغالطه و څه ته ويل کيږی؟

**جواب:** دا هغه قياس دی چي مرکب د داسي مقدماتو څخه وی چي هغوی مشابه د حق سره وی.

**مثال:** لکه د آس صورت پر يو دېوال باندی ليکل سوی يعني پر يو دېوال باندی د آس شکل تيار سوی وی. نو بيا موږ ددغه شکل په هکله ووايو "هذا فرس" يعني دغه آس دی. او هر آس حيوان وی نو دغه آس حيوان دی. اوس دغه قياس مشابه د حق سره دی. مګر په حقيقت کي دغه غلط دی ځکه دغه پر دېوال ليکل سوی شکل خو حيوان نه دی، البته د حيوان شکل دی.

**سوال:** برهان ولي عمده او غوره دی؟

**جواب:** ځکه دغه د يقيني نتيجې د ورکړي دپاره د يقيني مقدماتو څخه مرکب سوی وی. ځرنګه اصل په قضيو کي هغه قضيې دی کومي چي يقيني وی نو ددوی څخه مرکب سوی قياس هم اصل دی، په دغه وجه برهان عمده او غوره دی.

**تمت** (بروزشنبه، شعبان ۱۴۳۶هـ)

التمس منكم ايها الطلاب ان تدعوا لى ان يعطني الله الشهادة الحقة. ولنصرة المجاهدين الشاغلين فى الجهاد مع الجيوش الدجالية من اليهود والنصارى و الداعشية. و ان يعطى الحيوة الطولية الى امير المؤمنين اختر محمد المنصور ادام الله فيوضاته و بركاته علي امة محمدى. جزاء كم الله جزاء جزيلا مناسبا لدعائكم. الجمادى الاولى من السنة ۱۴۳۶هـ

## د مؤلف نوری علمي ملغلری:

**علم الكلام:**

اشرف العطايا شرح شرح العقائد

اشرف العطايا شرح الخيالي

**علم المعاني:**

اشرف العطايا شرح مختصر المعاني

اشرف العطايا شرح المطول

**علم النحو:**

اشرف العطايا شرح نحو مير

اشرف العطايا شرح هداية النحو

اشرف العطايا شرح كافية

اشرف العطايا شرح ملا جامي رحمه الله

اشرف العطايا شرح ملا غفور

**علم المنطق:**

اشرف العطايا ايساغوجي

اشرف العطايا شرح مير ايساغوجي

معصوم البيان شرح بديع الميزان

اشرف العطايا كنديا

**المواعظ:**

الدرر الغالية

اسلامي زندګي (اردو)

اسلامي ژوند

**علم الحديث**

اشرف العطايا ترجمه مع مختصر تشريح للبخاری

اشرف العطايا ترجمه مع مختصر تشريح للترمذی

اشرف العطايا ترجمه مع مختصر تشريح للمسلم

**اصول الفقه:**

اشرف العطايا شرح اصول الشاشي

اشرف العطايا شرح نور الانوار

اشرف العطايا شرح حسامي

اشرف العطايا شرح مسلم الثبوت

اشرف العطايا التوضيح و التلويح

**علم الفقه:**

اشرف العطايا شرح القدوری

اشرف العطايا شرح كنز الدقائق

اشرف العطايا شرح الوقاية (پښتو)

اشرف الرواية شرح شرح الوقاية (اردو)

د حج مناسک

د لمانځه احکام

د روژې احکام

**د تخصص في الفقه کتابونه**

اشرف العطايا شرح رسم المفتي (اردو / پښتو)

اشرف العطايا شرح مقدمة الشامي (اردو / پښتو)

اشرف العطايا شرح الاشباه و النظائر لابن النجيم المصری رحمه الله (اردو / پښتو)

اشرف العطايا شرح اصول الافتاء لمحمد تقي العثماني (اردو / پښتو)

